لـــــــورو زده کــــــړو وزارت
بغــلان د لــــوړو زده کـــړو موســـسه
ښـــوونځي او روزنـــې پـــوهنځی
پـــــښتو څانگـــــه

# ګړنې، څرګندنې او نومونې

## (اصطلاحات او محاورې)

لیکوال: شاه محمود کړوال

۱۳۹۱ هـ ش




چاپ چارې
مومند خپرندويې ټولنې تخنیکي څانگه/جلال آباد
اړیکشمېرې: ۰۷۷۷۶۲۶۱۶۱/ ۰۷۰۰۶۲۶۱۶۱
momand.books@gmial.com

# ګړنې ، ځرګندنې او نومونې

( اصطلاحات او محاورې )

Idioms, Expression and Terms

لیکوال : شاه محمود کدوال

۱۳۹۱ ل

ډالۍ ؛

مور ته ، هغه چې له ډېرو کړاوونو او رنځونو سره سره يې بياهم ، زما لاسنيوی وکړ او د افغاني کادرونو له کاروان سره يې يوځای کړم !

ارواښاد داکتر پوهاند زېورالدين زېور ته چې زما په روزنه کې يې ونډه ستره ده او د يوه رښتيني ښوونکي په توګه يې ، په ډېرو تاريخي پېښو وپوهولم .

# نیولیک


| سرلیک | مخګنه |
| --- | --- |
| سریزه | |
| اصطلاح د بېلابېلوژبنیو جوړښتونو نوم | |
| ژبني اصطلاحات | |
| ګړنه ( Idiom ) | |
| څرګندنه ( Expression ) | |
| پوهنیزې او ځانګېزې نومونې ( Terms ) | |
| نومونه ( Term ) | |
| د ګړنو په اړه د پوهانو نظرونه | |
| ګړنې او متلونه | |
| دګړنو ، څرګندنواونومونو جوړښتونه | |
| نوموالې ګړنې | |
| کړوالې ګړنې | |
| مانا او کارونه | |
| اخځونه | |

# سـریزه

د الله (ج) پنځـونـه داسې ده چې پـه نړۍ کې یې هر څېز ، د انسانانو د اړتیا پر بنسټ پنځولی ، هرڅیز پـه خپـل ځـای کې ارزښـتمن دی . کـله نـاکـله ، ځېنې څیزونـه مـوږ تـه بې ارزښتـه ښـکاري ځکه موږ یې پـر ارزښـت نـه پوهېږو او کـلـه هم ارزښـتـمـن ، دا هـم لـه دې امله چې پـر نیمګړتیـاوو او زیانونو یې نـه پوهېږو. دا خبره مې ددې لپـاره وکړه چې مـوږ ډېری هغه موضوعات څېړو او غوروو یې چې موږ تـه ارزښـتمن ښـکاري او کار پـرې ګټور ګڼو ، خو زما پـه بـاور هر تـوک چې د نړۍ پـرمخ نـنـګېـرل کیـږي ، د ځانګړي ارزښت لـرونکی او بې ګټې نـه دی . د ځینـو ارزښت او ګټې چې اوس لـه مـوږ پټې دي ؛ پـه راتلونکي کې بـه څرګندې او روښانـه شي .
ژبـه هـم یو لـه هغو ښـکارندو څخـه ده چې تـر دې دمه یې خورا ډېرې ګټې او ارزښـتونـه ، مـوږ تـه روښانـه شـوي دي . دا وسیلـه د انسانـي ژونـد د پـرمختـګ یـوه مـهـمـه هغـه ده . ژبـه د وګـړو تـرمنځ د خپـلمنځي اړیـکو د ټیـنګښت او یو تـربلـه پـوهـاوي ښـه او غوره وسیـلـه ده ، هغـه چـار او دنـده چې ژبـه یـې تـرسره کـوي ؛ نوري اړیکنۍ یې تـرسـره کـولای نـه شـي ، خو ژبـه هلـته ډېره پـراخـه او اغېـزنـاکېـږي چې ښـه تـشریح او یـو چـوکاټ کې ورولـوېـږي ؛ مـوخـه مې د ژبې جولیـزه او مانیزه څېړنـه ده چې ژبپـوهنیـزې څېړنې یې بـولـو .
پښتـو ژبـه هـم د نړۍ د نـورو ژبـو پـه څېـر یـوه ژبـه ده چې ډېر ویـونکي لـري . دا ژبـه خـورا لرغـونـی تـاریخ لـري چې پـه بېلابېلو پړاوونـو کې یې ، د ژبې د ټولنېزې ځانګړنې لـه مخې بـدلـونـونـه هم منلي دي چې لـه دې حالت سره هـره ټولنیـزه ښکارنـده مـخ ده . دا ژبـه هـم د نـورو ژبـو پـه څېر د ویـونکو د هـر ډول ذهنـي جاجونو ، د لېږد وړتیا لـري او بشپـړه پوهـونـه او راپـوهـونـه پـرې کېـدای شي . ګڼ شمیر هغـه ژبـني جوړښتـونـه چې د نړۍ نـورې ژبې یې لـري ؛ پښتـو ژبـه یې هـم لـري .
ګړنې ، څرګندنې او نومونې ، هغـه ژبنـي جوړښتونـه دي چې پښتـو ویونکي یې یو تـر بلـه سـره وایي .دا جوړښتونـه پـه ژبـه کې کاریږي او لـه نـورو ژبنیو جوړښتونو سره جوت توپیرونـه لـري ، ددې تـرڅنـګ ځینـې ګډې خـواوې هـم لـري . ګړنې هـغـه تـړښتـونـه دي چې لـه دوو یـا ډېرو ویـیو څخـه جـوړېـږي اود رغنده توکو آرې او لومړنۍ مانـاوې یـې ، پـه نـوي جوړښت کې چې ګړنـه ( Idiom ) یې بولـو ، بدلـون کـوي او یـوه نـوې مانا ورکـوي . دا وروستـۍ مانـا د رغنـده توکو لـه آرو او لومړنیو مانـاووسـره توپیـر لـري . پـه دې ډول جـوړښت کې ، هر ډول جاجـونـه لېږدېدای شـي .
ګړنـه پـه وینـا او لیکنـه دواړو کې کارېږي . د ګړنو کارونـه پـه ادب ( نثر او نظم ) کې ډېره ده . ګړنې هغـه تـړښتـونـه ( تـرکیبونـه ) دي چې پـه ژبـه کې نـوي نـه جوړېږي او مشخص ویونکي یې هـم څرګنـد نـه وي ؛ بلکې پـه مختلفـو اونـاڅرګندو وختـونـو کې جـوړې شـوې او پـه ژبـه کې ورننـوتـې دي . د ګړنـو پـه ترکیب کې هر ډول ویـیونـه ، لکـه : نـومونـه ، ستاینـومونـه ،کړولـونـه ، کړونـه او

وييکي راتلای شي . د ګړنو جوړښت ، يوه ترښتي ( ترکيبي ) جوله او بڼه لري يانې داچې ؛ دوه يا له دوو ډېر توکي لري .
بل ژبنی يوون څرګندنې ( Expressions ) دي چې ګړنو ته ورته جوله اوجوړښت لري ، خومانيز بدلون يې څرګند دی .
د اصطلاح ترنومونې لاندې بل جوړښت ، پوهنيزې او ځانګيزې نومونې ( Terms ) دي چې دا بيا له تېرو يادو جوړښتونو او يوونو سره جوليز او مانيز توپير لري . دا توپيرونه به درته په راتلونکې ليکنه کې څرګند شي .
وايي چې : " هرانسان ترخپله وسه پورې پړ دی " . ما هم ، تر خپلې وسې وسې ، هڅه کړې داسې يوڅه وړاندې او چمتو کړم چې لوستونکو ته پاموړ او ګټور وي ، خو پوره يو الله ( ج ) دی .
په پای کې هغه څوک يادوم چې هېرول يې راتــه ګران دي ؛ درنـه استاده ، داکتره پوهنـدوی زرغـونه رښتين زېور چې د اثر اوډنې په بهير کې مې لارښـوده وه او قدرمن استاد محمداصف صميم چې د اخځونو او اثرکتنې په برخه کې يې خپلې نېکې پېرزوينې په ما ولورولې .

درناوی
شاه محمود کهوال

# اصطلاح د بېلابېلو ژبنيو جوړښتونو نوم

که څه هم زموږ سیمې او هېواد ، د نړۍ د پرمختګ په بهیر کې خپل ځای لاره ، خو د ځینو لاملونو له امله اوس له دغه کاروانه پاتې او نړۍ له موږ ډېره وړاندې تللې ده ، ځکه نو اړ یو د ژوندانه په بېلابېلو ډګرونو کې ، له نورو زده کړه وکړو . که خبره راټوله کړم ، موخه مې له ژبنيو څېړنو څخه ده چې تر ډېره یا یې په سر کې بهرنیان وو یا زموږ پوهانو له هغوی زده کړې کړي یا داچې زموږ پوهانو نورې ژبې څېړلې او بیا یې د هغوی له مخې په خپله ژبه کې څېړنه کړې ده . که څه هم داکار یو غوره هغه وو او دی چې موږ یې تر دې دمه رارسولي او ژبه مو هم تر یوه بریده څېړل شوې ده ، خو یولړ ستونزې یې هم زېږولې چې په ګوته کول یې ، په دې ځای کې ناشوني ګڼم .له بلې خوا مې پوهنیزه کچه هم د دې جوګه نه ده چې پر داسې کړکېچنوموضوعاتو یوه بشپړه څېړنیزه لیکنه وکړم .
یو له دغو ستونزو چې په ګوته کول یې زما ناچاري ده ، د ژبنيو څېړنو په لړکې د مختلفو ژبنيو توکو یا یوونو لپاره د نومونو( Terms ) غوراوی دی چې د یوه لیکوال په اثارو کې په یوه ډول او د بل په هغه کې ، بل ډول لیکل کېږي . د بېلګې په توګه د ( اصطلاح ) ویی . فکر کوم دا ستونزه به تر هغې وي چې د هرې پوهې او هنر لپاره خپله بشپړه پوهنیزه ،کره او یوازېنۍ پښتو نومونې ( Terms ) او نومونپوهنه ( Terminology ) رامنځته کړو ، په تېره ژبپوهنیزه او پښوییزه هغه .
د پورتني ویي د لومړنۍ کاروني نېټه راته سمه څرګنده نه ده ، خو داچې عربي دی ، څه ناڅه روښانه ده چې سیمې ته د اسلام ، عربي ژبې او فرهنګ له راتګ وروسته ؛ دود شوی دی . دا ویی زموږ په ژبه کې د داسې بېلابېلو ژبنیو یوونو لپاره کارېږي چې که له یوې خوا ، وبله ګډې مانېزې او جولېزې ځانګړتیاوې لري ؛ توپیرونه هم لري چې یوه نومونه ( Term ) ورته غوره نه ابسي .

اصطلاح یوعربي ویی دی چې د څرګندنې ( Expression ) ، ګړنې یا محاورې ( Idiom ) او نومونې ( Term ) د ژبنیو جوړښتونو لپاره کارېږي ، نه د یوه یوازېنې جوړښت لپاره . په دې مانا کله چې موږ د ( اصطلاح ) ویی اورو ، نو بېلابېل جوړښتونه مو ذهن ته راځي . دا ستونزه ځکه رامنځته کېږي چې موږ د خپلو ژبنیو جوړښتونو لپاره خپل نومونه نه لرو او که لرو یې هم ، نوي او د بېلابېلو لاملونو له مخې ډېر دود شوي نه دي .
استاد محمد اصف صمیم ( اصطلاح ) داسې راپېژني :
اصطلاح یو عربي ویی دی چې په آر او بنسټ کې یې صلح پرته ده چې ښه کېدو ، موافقې ، موزون او مناسب کېدلو ، ورو ورو سمبدنې ، پرمختګ ، اخیستلو ، غوره

کولو ، منلو ، پایلې راوتو ، څرګندونې او هغه جاج او مفهوم ته وایي چې ژبوالو د څه ځانګړې مانا لپاره ټاکلی وي (۱۲ : ۶) .
حسن عمید په (فرهنګ عمید) کې د اصطلاح په اړه لیکي :
سوله کول ، جوړجاړی ، پخلاکېدل ، د یوه ویي د وضع کولو لپاره د یوې ځانګړې ډلې اتفاق ، هغه ویی چې یوه ډله او ټولنه یې ، د ځان لپاره وضع کړي ، یوه ویي ته له آرې مانا پرته ، بله او دویمه مانا او مفهوم ورکول ، هغه ویی چې په یوه پوهه او فن کې ، له آرې مانا پرته ځانګړې مانا ولري (۱۳ : ۲۱۶) .
ښاغلی زاهد مشوانی په دې اړه لیکي :
داسې ژبنی ترښت چې ټول ویي یې ، په خپلو اصلي ماناوو نه کارېږي ، ګړنه ، ټرم ، محاوره (۷ : ۲۶) .
د اصطلاح په اړه له پورتنیو څرګندونو نه جوتېږي چې ولې د بېلابېلو ژبنیو جوړښتونو لپاره نوموړې نومونه (Term) غوره شوې ده ؟
ګړنې یا محاورې (Idiom) ته ځکه اصطلاح وایي چې ددغه ډول ترښت یا ترکیب آره مانا یوه مګر څېرمه یا دویمه مانا یې بله وي ، خو په دویمه مانا یې جوړجاړی ، موافقه او د وګړو ترمنځ تړون او اتفاق شوی وي . د دغه ژبني جوړښت توکو ته له آرې مانا پرته بله ، مانا غوره او ورکول شوې وي . همدارنګه د نورو هغو ځانګړنو له مخې ورته چې تاسې یې د (اصطلاح) په مانا کې لیدلای شئ ؛ دا نوم غوره شوی دی .
بل ژبنی جوړښت چې اصطلاح ورته ویل کېږي ، پوهنیزې او ځانګیزې نومونې (Terms) دي . دې ډول ته هم ځکه اصطلاح وایي چې په پوهنیز او ځانګیز ډګر کې ، یو ویی د یوې ډلې او ټولنې د اتفاق او موافقې په ترڅ کې ، غوره او وضع کېږي او یا هم هغه ته له آرې مانا پرته بله مانا غوره کېږي . همدارنګه څرګندنه (Expression) چې دې جوړښت ته هم اصطلاح وایي .
په ټولیز ډول اصطلاحات او محاورې (Expression , Idiom , Term) د خپلو ځانګړنو له مخې په دوو برخو وېشل کېږي :
الف ـ ژبني اصطلاحات :
له ژبنیو اصطلاحاتو نه موخه ګړنې او څرګندنې (Expression , Idiom) دي چې وړاندې پرې لږ څه رڼا واچول شوه . دلته پرې ډېر ګړېږو :
۱ . ګړنه یا محاوره (Idiom) :
Idiom (ګړنه) چې له یوناني ویي (Idioma) څخه راوتلې ، مانا یې "ځانګړتیا" او "ځانګړې څرګندون" دی (۱۶ : ۸۱) .

هغه ژبنی جوړښت چې دا نومونه ورته غوره شوې ، ځانګړې مانیزه او جولیزه بڼه لري . په دغه جوړښت کې رغنده توکي ، په جلا او خپلواک ډول یوه مانا او په تړلي او ترکیبي ډول دویمه او ځانګړې مانا لري .

لکه چې وړاندې وویل شول ، ګړنې هغه ځانګړي ژبني یوونونه دي چې تل په دویمه او مجازي مانا کارېږي . هغه مانا چې د دغه ډول جوړښت توکي یې ګوښې ورکوي ، په یوه تړلي شکل کې یې له لاسه ورکوي او یوه نوې مانا چې دویمه ، ځانګړې او مجازي ورته وایو ، راخپلوي .

د ګړنو دغه ځانګړتیا نړېدې په ډېرو ژبو کې یوشان ده او یوازې هغه ژبنی یوون ګړنه ( Idiom ) بولي چې پورتنۍ ځانګړتیا ولري . نوموړی جوړښت په انګرېزي ژبه کې هم پښتو ته ورته دی ، هغه څرګندون ډول چې له رغنده توکو یې مانا توپیر لري ؛ ګړنه باله شي . دا جوړښتونه د یوې ژبې ځانګړي هغه دي چې بلې ژبې ته یې اړول یا ژباړل ناشوني دي ( ۱۹ : ۲۳۱ ) .

An Idiom is a phrase whose meaning is difficult or sometime impossible to guess by looking at the meaning of the individual words it contains.

یوه ګړنه هغه غونډ ( Phrase ) دی چې د رغنده توکو ماناوو ته په کتو ترې ، د مانا اټکل ستونزمن او کله نا کله ناشونی وي .

A group of words whose meaning is different from the meaning of the individual words.

هغه وییغونډ چې مانا یې د رغنده توکو له ماناوو سره توپیر ولري .

A kind of language and grammar used by particular people at a particular time or place.

هغه ژبنی او پښوییز جوړښت ( یوون ) چې د ځانګړو وګړو له خوا ، په ځانګړي وخت یا ځای کې کارېږي ( ۱۸ : ۷۷۰ ) .

د بېلګې په توګه په امریکا کې ( Apples and Oranges ) یوه ګړنه ده چې آره مانا یې ( مڼې او نارنجان ) دي ، دا هغه وخت کارېږي چې موخه د وګړو او څېزونو ترمنځ توپیرنه وي لکه :

You can't compare Atal and Zyarmal, They're Apples and Oranges.

ته اتل او زیارمل سره پرتله کولای نه شې ، دوی ( مڼې او نارنجان ) دي . دلته له یوې خوا زموږ هغه خبره جوتېږي چې وړاندې مو وکړه چې د یوې ژبې ګړنه ( Idiom ) پر بلې هغې ژباړل کېدای نه شي ، ځکه ( مڼې او نارنجان ) څه مانا لري ؟ له بلې خوا دا راښیي چې د پښتو او انګرېزي ژبې ګړنې جولیز او مانیز ورته والی سره لري .

د ( Apples and Oranges ) ګړنې ته که ځېر شو ، د مڼو ( Apples )او نارنجانو ( Oranges ) ځېل او رغښت توپیر لري ، هم د رنګ او هم د خوند او کېدای شي نور چې اړوند پوهان ( کرپوهان ) به یې ښه پوهېږي ، خو نالوستي او عام وګړي یې یوازې په ډېرو ښکاره او څرګندو توپیرونو پوهېږي او درک یې کوي . همدې توپیر ته په کتو ، دا ګړنه د نورو څېزونو او وګړو د توپېرنې لپاره هم کارېږي . پورتنۍ وینا داسې پښتو کولای شو :

تـه اتل او زیارمل سره پرتـله کولای نه شي ، دوي د ځمکې او اسمان تـوپیر سره لـري یـا اتـل او زیـارمـل سره د پـرتـلې وړنـه دي ، دوی د ځمکې و اسمان په څېر دي . مـوږ پـه پښتـو کې د تـوپیرنې لپاره بېلابېلې ګړنې ( Idioms ) لـرو ، لکه : ځمکه و اسمان ، اور و اوبـه ، تور و سپین او نورې چې د کـارونې بېلابېل ځایونه لري او هره یوه یې ښایي د ځای او حالت له مخې پـه خپـل ځای وکـارول شـي .

پـه انګرېزي ژبـه کې هم یوه ګړنـه یو ویی نه ؛ بلکې یو غونډ ( Phrase ) دی ، پـه دې مانـا چې لـه دوو یـا زیاتـو وییو او وییکو رغون مومي . ما چې نږدې ډېرې انګرېزي ګړنې وپلټلې ، کوچنۍ هغـه یې ( As is ) وه چې دوه تـوکي ( As ) او ( is ) لـري . د دوی پـر وړانـدې داسې ګړنې هم وې چې د رغنـده تـوکو شمېر یې نږدې اوو تـه رسېده ، خو دا یې وروستـی برید نـه دی ، شـونې ده چې تر دې ډېر تـوکي ولـري ( ۱۷ : ۹ ) .

ګړنې پـه ژبه کې لرغونی او نـاڅـکلېدونکی تـاریخ لـري ، هغـه وخت چې ژبـه رامنـځته شـوې ، د پـراختـیا پـه بـهیر کې یې ، پـه مختـلفو پـړاوونـو کې ، ګړنې رامنځتـه شـوي ، د ګټـنې او کـارونـې وړ ګرځېدلي دي . ګړنې د وګړنیز ژونـدانـه د بېلابېلو برخو ښکارنـدوی او څرګندوی دي .

لکه چې څرګنده ده ، هره ذهني ښـکارنده ، لومړی لـه یوه وګړي او سرچینې پیلېږي ، بیا نورو تـه خپـرېـږي او پـراختـیا مومي ، پـه همدې ډول ګړنې هم لـومړی د یـوه وګړي پـه وسیله رامنـځتـه شـوي ، د وګړو پـه منځ کې ویل شوې او بیـا وروستـه یې ټولیزوالی او عـامـوالـی مونـدلـی ، لکه: لنډۍ ، متـل او نـور ولسـي ( فولکلوریک ) تـوکي چې د یـوه وګړي وینا ده او وروستـه د ټول ولس مال ګـرځېدلی وي .

ژبـه یـوه تـړونـي او قراردادي ښـکارنـده ده ، د یـوې ټولنې وګړي ، د خـپـلو ورځنیـو چـارو د پـرمختـګ لپاره بېلابـېل څېزونـه رامنـځتـه کوي او پـرهغـوی نومونـه ږدي چې هغـه څېـزونـه بیـا پـرې پېژندل کېږي . ګړنې هم تـړلي او تـرکـېبي جـوړښتـونـه دي چـې د رغـنـده تـوکو جلا جلا کـارونـه یې یوه مانـا او کـه یـوځای او تړلي وکـارول شي ، بله مانـا ورکوي چې د جلاجلا کـارونې لپـاره یې هم د وګړو تـرمنځ تـړون او قـرارداد شـوی او د یـوځای او تـړلي جوړښـت لپـاره یې هم پـه دویمـه او مجازي مانـا د وګړو تـړون شـوی دی . د ګړنـو منـځتـه راتـګ د یـوې انـګېـزې لـه مخې کیـږي او هغـه څوک چې پـه ذهـن کې ګړنـه جوړوي او د یـوې ځانګړې مـانـا لـپـاره یې تـرخـولـې راوبـاسـي ، د ګړنې د رغنـده تـوکو پـه آره او لـومړنـی مـانـا پـوهـېږي ، خو پـه تـړلي او تـرکیبـي بڼـه دغـه تـوکو تـه بلـه مانـا ورکوي . د ګړنې تر رامنـځتـه کېدو وړانـدې د یـوې پېښـې پېښېدنـه اړینـه ده چې تـرې وروستـه دغـه جوړښـت رامنـځتـه شـوی ، د بېلګې پـه تـوګـه ( غوږخوړل ) یـوه ګړنـه ده لومړنۍ او آره مانـا یې د غـوږ خوړل ، خو دویمـه ، ځانګړې او ګـړنۍ ( Idiomatic ) مانـا یې لـه یـوه غـږ څخـه د غـوږ یـا غوږونـو ربړېدل او ځوربـدل دي .

د ګړنې رامنځته کوونکي د شاعرانه مزاج ، خیال ، پیاوړي ذهن او فکر خاوندان دي چې د دغه جوړښت د لومړنۍ مانا په رڼا کې هغې ته دویمه او مجازي مانا ورکوي چې له دې څخه د لومړنۍ او دویمنۍ مانا ترمنځ د اړیکوشتون څرګندېږي چې پر هغې پوهېدل خورا ګران او ستونزمن دی .

له ژبني پلوه ګړنې تل دوه یاتر دوو زیات توکي لري او تردې دمه هغه ټولې ګړنې چې ما په پښتو او انګرېزي ژبو کې لیدلي ، ساده او یو توکیزه یې نه درلوده . څومانیز ویي ، په دې لړۍ کې نه شمېرل کېږي . په ګړنو کې ټول ژبني یوونونه ( خپلواک او ناخپلواک ) کارېږي او په کوم ځانګړي یوون پورې تړلي نه دي . وروستی توکی یې د وګړي ( شخص ) او شمیر له مخې اوړي ، هغه هم په کړوالو ګړنو کې .

ګړنې د وینا په هر ځېل او ډول کې د کارېدنې وړدي ، نثر وي که نظم ( شعر ) . داچې د شعر ژبه هم ناسیده او پېچلې وي او ژرپوهېدل پرې ګران دي ، ګړنې هم همداسې یوه ځانګړنه لري ، له دې کبله د ګړنو کارونه په نظم او شعر کې ډېره ده . له بلې خوا ، د لیکنۍ ژبې په پرتله د ګړنۍ هغې لرغونتوب ته په کتو ، څرګنده ده چې ګړنې هم لومړی په ګړنۍ ژبه کې رامنځته شوي او بیا یې لیکنۍ هغې ته لارموندلې چې اوس په وینا او لیک دواړو کې کارېږي .

ګړنې د بڼې او جولې له مخې بدلون مني ، خو مانا یې جوته او نااوړېدونې وي . د بېلګې په توګه ( لاس وینځل ) چې یوه ګړنه ده ، مانا یې ، هیله پرېکېدل ، نهیلي ، زړه صبرېدل او تېرېدل دي ، خو که د دغې ګړنې لومړی توکی ( لاس ) په ( لاسونو ) واوړي ، بڼه یې اوړي ، خو مانیز بدلون نه مني او هغه مانا چې ( لاس وینځل ) یې لري ( لاسونه وینځل ) یې هم ساتي . د بېلګې په توګه یو څوک یوه پلار ته وایي ( له زوی څخه دې لاس ووینځه ؛ د کار نه دی . ) یا ( له زوی څخه دې لاسونه ووینځه ؛ د کار نه دی ) یا( له زامنو دې لاس / لاسونه ووینځه ) خو کله هم کیدای شي جولیز بدلون د مانیز بدلون لامل شي .

په غونډله کې د کارېدنې پروخت هم د ګړنو توکي خپل ځای بدلوي ، د پښتو غونډلې د جوړښت او غوښتنې پر بنسټ ځان سموي ، لکه ( غوږخوړل ) یوه ګړنه ده چې د یو لوړ او جګ غږ ( لکه د سندرې یا وګړي ) نه د ربړېدلو او ځورېدلو پروخت کارېږي . یو څوک بل ته وایي ( ډېرلوړ یا جګ مه غږېږه ، غوږونه دې راته وخوړل ) چې دلته له یوې خوا ( غوږخوړل ) په ( غوږونه خوړل ) اوښتی او له بلې خوایې ترمنځ ( دې ، را ، ته ) ځای پر ځای شوي او د ( غوږخوړل ) ګړنې جولیزه جوتیا او ټیکاو یې له منځه وړی دی .

داچې ویی د یوې مانا لپاره رامنځته شوی او د یوې مانا ښکارندویي کوي ، خو په یوه ګړنه کې ، خپله آره مانا له لاسه ورکوي او دویمه مانا راخپلوي ، نو د وییو د لومړنۍ مانا له مخې د یوې ګړنې ژباړه تېروتنه او ناشونې ده ، ځکه په ګړنه ( Idiom ) کې ، د وییو لومړنۍ تړونې او قرادادي ماناچې په ټولنه کې یې لري ، له منځه ځي او دویمه مانا موخه ده ، پکارده دویمه

مانا يې وژباړل شي نه لومړی هغه . کېدای شي ژباړن د يوې ژبې لپاره په بلې هغې کې داسې گړنه بيامومي چې مانيزه يورنگي ولري .

۲ . څرگندنه ( Expression ) :

که څه هم ، ما د دغه جوړښت په اړه يو شمېر راسره کتابونه وپلټل چې هغه ځانگړی جوړښت او ژبنی يوون چې دا نومونه ورته غوره شوې بيامومم ، خو په دې کار کې څه برې راپه برخه نه شو. يوازې ښاغلي پوهاند داکتر زيار په دې اړه په خپلو اثارو کې څه نا څه ليکلي او بس .

څرگندنه ( Expression ) هم هغه ژبنی يوون او جوړښت دی چې د دوو يا تر دوو زياتو وييو ( خپلواکو او ناخپلواکو ) له ترښت او ترکيب څخه رامنځته کېږي . ښاغلی پوهاند داکتر زيار په دې اړه ليکي :

څرگندنه يا اصطلاح ( Expression ) له گړنې ( Idiom ) سره همدومره توپير لري چې د گډې مانا څرک يې له رغنده توکو ( متشکله اجزاوو ) څخه لږو ډېر لگېدلای شي ، لکه: برخه اخيستل ، لاس اخيستل ، ترلاسه کول ، لاس ته راوړل ، خوله پر خوله کېدل ، مخ پرمخ کېدل ، موخې ته رسېدل ، وروسته پاتېدل ، لاندې نېول ، پر ښه راتلل ، لاس لگول . . .( ۹ : ۱۴ ) .

څرگندنې او گړنې ( Idiom , Expression ) د خپل ځانگړي جوړښت له امله چې لري يې ، دا او دې ته ورته ژبني يوونونه چې دوه يا تر دوو زيات ژبني توکي لري او عبارت ، ترکيب او غونډ ( Phrase ) يې هم بولي ، د ژبپوهنې د يوې جلا څانگې غونډپوهې ( Phraseology ) په ترڅ کې څېړل کېږي ، خو د دود له مخې يې د غونډله پوهې په برخه کې د څېړنې ځای نيولی دی .

هغه يوونونه چې د غونډپوهې ( Phraseology ) په ترڅ کې څېړل کېږي ، د فرېزيولوگيزمونو ( Phraseologisms ) په نامه يادېږي چې د موندنې او پيدا ښت سرچينې يې دا دي :

الف . فولکلور Folklore ( ولسي يا گړني ادبيات ) .

ب . بديعي او هنري ادبيات .

ج . د مشرانو ، لويانو او سپېڅلو وگړو له ويناوو څخه را اېستنه او اقتباس ( ۱۶ : ۸۰ ) .

ايډيم ( گړنه ) د مانا (Semantic ) له نظره ، د نحوي پوهې په چوکاټ کې نه څېړل کېږي ؛ بلکې د ژبپوهنې يوه ببله څانگه ده چې دغه ډول اصطلاحات ( گړنې ) څېړي .

فرېزيولوژي ، د ژبپوهنې د يوې څانگې په توگه او هم د ژبپوهنې د همدغې څانگې د څېړلو د موضوع په حيث پېژندل شوې . د څېړلو دغې موضوع ته فرېزيولوگېزم هم ويل شوی دی . دغه څانگه د ژبې د ويي وييز او مانيز ترکيبونه څېړي .

فرېزيولوژي د يوناني ژبې له ( Phrases ) او ( Logos ) څخه منځته راغلې ، نو ( Phrases ) د څرګندونې او ( Logos ) د پوهنې په مانا دی ، همدارنګه په دې اړه ډېرو ژبپوهانو څرګندونې کړي دي :

الف . فرېزيولوژي په ژبه کې د ژبې ثابتو ترښتونو غونډ ته وايي .

ب . جوت وييز ترښتونه فرېزيولوګېزم ( فرېزيولوژي ) ګڼل کېږي .

ج . جوت وييز ترښتونه چې په دوديز ډول تکرار شوي وي ، د فرېزيولوګېزم په نامه يادېږي ( ۶ : ۷۲ ) .

ب . پوهنيزې او ځانګيزې نومونې ( Terms ) :

وړاندې مو د څرګندنو او ګړنو ( Idiom , Expression ) په اړه څه نا څه رڼا واچوله ، اوس پوهنيزې او ځانګيزې ( فني ) نومونې ( اصطلاحات ) څېړو :

د ( Term ) او ( Termin ) وييې د لاتيني ژبې د ( Terminus ) له وييې څخه راوتلي چې مانا يې حد ، حدود ، بريد ، پېر او نومول دي . له يادو ماناوو څخه وروستۍ يې پاموړ ده . هغه پوهه چې د پوهنيزو او ځانګيزو نومونو ( اصطلاحاتو ) په اړه ويېنه کوي ، نومونپوهنه ( Terminology ) بولي ، همدارنګه ټرمينالوژي د نومونو ( Terms ) ټولګې او غونډ ته هم وايي .

دا ډول نومونې ( Terms ) هغه نومونه دي چې د پوهې ، تخنيک ، هنراو يا په ټوليز ډول د پوهنو او هنرونو په برخه کې رامنځته کېږي . د يوې ژبې ټول وييې نومونې ( اصطلاحات ) نه بلل کېږي ؛ بلکې هغه وييې چې د يوه پوهنيز او ځانګيز نوم په توګه ځانګړي شوي وي ، نومونه ( Term ) بلل کېږي . په دې برخه کې ښاغلی پوهاند رښتين وايي :

ويی هغه دی چې د يوې مانا لپاره رامنځته شوي وي او درستو خلکو پرې اتفاق کړی وي ، نو له دې پلوه ، ويی او نومونه ( اصطلاح ) سره توپير لري ، ځکه چې نومونه هغه ده چې يوې ځانګړې ډلې پرې اتفاق کړی وي ( ۵ : ۹ ) .

په يوه ژبه کې د دغې ډول وييو او نومونو شمېر تر نورو عادي هغو ټاکلی ، ټړلی او محدود وي . هره ژبه ځانته جلا نومونې ( Terms ) لري ، هرڅومره چې ژبه پراخه او پرمختللې وي ، نو د پرديو له نومونو يا اصطلاحاتو نه هم خوندي وي ، خو د نړۍ د مختلفو وګړو ترمنځ پوهنيزه او ځانګيزه راکړه ورکړه ، د دې لامل ګرځي چې ځينې نومونې هم يوبل ته ولېږدوي . دلته دا خبره اړينه ده چې بډايې او شتمنې ژبې تل کمزوريو هغو ته نومونې لېږدوي .

هغه وييې چې نومونې ( Terms ) ګرځي ، داسې وي چې له وړاندې د ژبې په وييزېرمه کې وي او د ژبې ويونکي يې په خپلو ورځنيو خبرو کې کاروي . وروسته چې کله يوه پوهنيزه او ځانګيزه ډله ، په خپل اړوند ډګر کې يوه ښکارنده رامنځته کوي ، نو هغه عادي ورځنی کاربدونکی ويی رااخلي او په خپله برخه کې ، هغه نوې ښکارنده پرې نوموي ، په دې توګه هغه عادي او ورځنی ويی نومونه يا اصطلاح ګرځي او يا هم کېدای شي دغه نومونه داسې وي چې هغه ويی

چې نومونه ( Term ) گرځي ، وړاندې په عادي ورځنۍ ژبه کې نه وي او نوی رامنځته شي . لکه د " دریځ " ویی چې وړاندې په عادي گړنی ژبه کې د ( د دربډلو ځای ، ممبر ) له ماناوو سره وو ، وروسته یوه سیاسي نومونه ( Term ) گرځېدلې او هلته یې د ( موقف ) مانا راخپله کړې ده ، همدارنگه ځینې ویي چې وړاندې په ژبه کې نه ول او نوي رغېدلي ، لکه د " پوهنیون او نوماند " ویي او اصطلاح ، خو ښایي په یاد ولرو چې پورتنی چار ( نیولوگیزم ) د ژبپوهانو او ځانگوالو په وسیله ترسره کېږي .
په همدې توگه ځینې ویي ، لکه وړاندې چې یاد شول ، داسې وي چې په ژبه کې په نورو بڼو وي ، خو په نوې بڼه یې شتون یوازې نومونیزیا اصطلاحي وي ، د ساري په توگه د " پوهنتون او پوهنځي " ویي چې د ( پوهه پوهنه ، پوهول ، تان ، تون او ځای ) ژبني توکي ، په ژبه کې له وړاندې وو ، خو وروسته ترې د " پوهنتون او پوهنځي " نومونې ( Terms ) په نوې بڼه د یوې پوهنیزې اړتیا له مخې رامنځته شوې دي . هره پوهه او ځانگه ځانته جلا نومونې ( Terms ، Terminology ) لري چې هره یوه یې په خپل ځای کې ځانگړې مانا لري ، لکه ادبي ، سیاسي ، ټولنېزې ، فلسفي ، تصوفي ، ساینسي ، اسلامي ، پوځي او نورې .
د بېلگې په توگه په ژبپوهنه کې ( غږ ) یوه نومونه ده ، همدارنگه ( جگړن ) یوه پوځي هغه ، چې دا نومونې ( Terms ) وړاندې هم په عادي او ورځنۍ ژبه کې وې .
په یوه ژبه کې نه یوازې خپلې نومونې کارېږي ؛ بلکې د نورو ژبو هغه هم کاروي ، په تېره بیا هغه چې نړېواله یا سیمه ییزه بڼه ولري ، لکه : کېمیا ، بیولوژي ، فېزیک ، تاریخ ، طب ، راکټ ، کېلو ، سیستم ، قول اوردو . . . دا ډول نومونې یا اصطلاحات ( Terms ) د جوړښت له مخې کېدای شي کله ساده او یوتوکیز وي او کله دوه توکیز یا ډېر . بیا دا خبره راغبرگوم چې د نومونو رامنځته کول د یوه پوهنیز پلاوي ، ډلې ، جرگې او ټولنې له خوا ترسره کېږي او بیا نورو اړوندو وگړو ، ځانگوالو ټولنو ته خپرېږي .
په ټولیز ډول نومونې ( Terms ) لاندېنۍ ځانگړنې لري :
۱ . نومونه ( Term ) یومانیزه ( Monysemy ) وي ، که په ژبه کې یو ویی ځومانیزې او ډېرمانیزې ځانگړنې ولري ، خپله نومونیزه ځانگړنه له لاسه ورکوي ، یا هم کېدای شي ، عمومي او ورځني ویي خپلې ځینې ځانگړنې او ماناوې له لاسه ورکړي او پر نومونه واوړي ، کله ناکله کېدای شي ، خپله نانومونیزه یا نااصطلاحي ځانگړنه هم خوندي کړي ، لکه: ( غږ ) چې هم یو عمومي او ورځنی ویی دی او هم د ژبپوهنې ( غږپوهنې ) یوه نومونه . همدارنگه ( مخرج ) چې هم یو ورځنی او عمومي ویی دی او هم د ریاضي او غږپوهنې نومونه ده .
۲ . نومونې ( Terms ) په خپلواکه او ناتړلې توگه مانا ورکوي او له دې پلوه د نورو عادي ژبنیو وییو په څېر چې تر خپلمنځي تړاو وروسته مانا ورکوي ؛ اړمنې نه وي . یانې په وینا کې قرینې ته اړتیا نه لري ، په خپلواک او جلا ډول کارېږي ، له قرینې پرته د پوهېدو وړ وي . کله هم په ژبه

کې یوه نومونه په څو نومونیزوجاجونو ( اصطلاحي مفهومونو ) کارېږي چې هغه وخت ،کله ناکله بنستیزه موخه راپېژني ، لکه : سېمبول په ژبپوهنه او سېمبول په کېمیا کې او نور .
۳ . نومونې له احساسي او بوربنوړیو ( هیجاني ) پېښو سره اړیکی نه لري ؛ بلکې د پوهې او هنر د مختلفوبرخو په یوې ځانګړې موضوع پورې اړه لري او په ځانګړو پوهنیزوجاجونو پورې تړلې وي .
۴ . ځینې نومونې نړېواله او عمومي بڼه لري او په مختلفو ژبو ژباړل کېدای نه شي . دغه ډول نومونې نږدې ټولو ته پوهېدونې وي او ځانګو ته ځانګړې نه وي . ځینې نومونې بیا داسې وي ، چې د یوې ځانګړې څانګې د پوهانو لپاره پوهېدونې وي ، خو کېدای شي د ټولو لپاره نه وي ، لکه : فلسفه ، دیموکراسي ، کنفرانس ، فوټبال ، کمونېزم ، ترافیک او پولیس چې ډېری یې ټولو او عامو وګړو ته څه نا څه پوهېدونې دي .
۵ . پــه ژبو کې ځینې داسې ویې شته چې هم په خپله جلا ځانګړې او ځانګیزه مانا کې نومونه اوهم د نانومونیزې مانا لرونکي وي لکه : ( ځایناستی ) یانې نومځری پښویېزه نومونه ده او ( ځایناستی ) یانې کفیل نانومونیزه ( نااصطلاحي ) یا اداري نومونه . همدارنګه ( مفهوم یا جاج ) په منطق او فلسفه کې نومونه او ( مفهوم ) د نانومونیز ( نااصطلاحي ) ویې په توګه د پوهول شوي ، مانا ، روښانه ، او مضمون مانا لري ( ۱۶ : ۷۸ ، ۷۹ ) .
په پښتو ژبه کې د نومونو ( Terms ) څو بېلګې :
الف . پوځي :
برېدمن ، تورن ، جګتورن ، جګړن ، ډګرمن ، ډګروال ، تېښتـه ، منډه ، برېد ، اور ، پروت ، سلام کئ ، کېڼ خوا ګور ، ښی خواګور ، شاخوا ګور ، تیارسئ ، څارمن ، پاسوال . . .
ب . سیاسي او اداري :
دریځ ، ولسمشر ، هېواد مشر ، څارنوال ، لویه څارنوالي ، ولسوال ، ولسوالي ، ښاروال ، ښاروالي ، نوماند ، مېنه ، کوټ ، څلی ، وګړواکي . . .
ج . پوهنیزې :
پوهنتون ، پوهنځی ، کتابتون ، پوهیالی ، پوهنیار ، پوهاند ، ښوونکی ، ښوونځی ، رنځپوه ، روغتیاپال ،روغتون ، ښوویالی ، ښوونیار ، څېړندوی ، څېړنوال . . .( ۱۱ : ۳۷-۴۰ ) .

# د ګړنو په اړه د پوهانو نظرونه

( ۱ )

ژبه که څه هم د غږیزو او اوریزو نښو یا پیلامو ( سېمبولو ) یوه پرله غښتې ټولګه ( سیستم ) بلل کېږي چې هره پیلامه یې له آره په ترونې ډول د یوه څه نومونه کوي او په دې توګه لکه لیکپاڼه دوه ناشننوړ مخه لري ، یو مخ یې نانګېږېدونې ( نامحسوسېدونې ) مانیزه لوښه ( خصلت ) لري او د غږېدونکي وګړي د یوه ذهني انځور ښکارندويي کوي او دا بل مخ یې د یوه ننګېږېدونې ( محسوسېدونې ) او توکیز ( مادي ) استر ، لوښې یا کالب ؛ یا په دودیز پېژند ( تعریف ) یو مخ یې جوله ( لفظ ) دی او بل یې منځپانګه ( مانا ) ، خو له دې سره سره ( په ښکاره ډول ) ژبه د پېړیو په پوړیو کې د جولې او مانا یا نوم او نومولي ترمنځ ورتاکلي تړاو لړ و ډېر له خرخشې او بدلون سره مخامخوي او په دې ادلون بدلون کې یو ټاکلی ویی ( لفظ ) ګوښې یا له نورو وییو سره د غونډ په توګه یوه بله یا نورې څو ماناوې او منځپانګې راخپلوي . ګوښې ، لکه : دریځ چې له آره ټاکلې مانا یې د " درېدلو ځای " یا " ممبر " وه ا ونن سبا ترې د سیاسي یا ټولنیز موقف ، موضع ، مشې . . . ماناوې اخیستل کېږي . د ویې غونډ په توګه ، لکه : غوږ نیول ، غوږ رپول ، زړه خوړل ، زړه کول ، لاسته راوړل ، لاس اخیستل ، لاس نیول . . . .

له دغه وروستي ډوله په ځانګړې توګه دا پایله لاسته راځي ، ترهغې له مخه چې په ژبه کې په پوره اګاهانه ډول ادبي او شاعرانه انځورونه یا سېمبولونه رامنځته شي ، له ډېر پخوا څخه دغسې ورته بېلګې رازېږېدلې وې ، یا په بله وینا ، څه نا څه ورته وییغونډونه ،ګړنې او څرګندنې ( محاورې او اصطلاحات ) بلل کېږي ، که څه هم ښایي ډېری یې د متلونو او راز راز پېښنواو کېسو ( لیدونو ) زېږنده وي او له دې سره ترمتلو راوروسته د ادبي یا هنري ډوله هڅو او ښکارندو په یوڅه راوروسته ژبني پړاو اړه پیداکړي ، نو که دغه راز جوړښتونه د بېلابېلو رغنده ټوکو پرځای د ناشننوړ یوونو یا غونډونو په سترګو وګورو ، یاد شوی تړوني تړاو یې په پرتلیز ډول تر لومړنیو یووستوو سېمبولونو زیات اګاهانه ارزول کېږي ؛ که څرګندنه وي ، ښایي ، سانیه نیمه یې په غبرګون کې لارغه ( مکث) کوي او که ګړنه وي ، خبره څو سانیو ته رسېږي ( ۸ : ۳۲۳ ) .

یوه ګړنه ( Idiom ) یو داسې وییغونډ دی چې راز راز مانا والو ( دوو یا ډېرو ) وییو او وییکو څخه رغېدلی وي او په ژبه کې یو ناټکلېدونی لرغونتوب لري . یوه ګړنه تل په جولیز ډول یو ناشننوړ او ټینګ یووالی نه وي ، خو په مانیز ډول یو ناشننوړ غونډ ( مجموع ) ګڼل کېږي . په بله وینا ، ګړنه د داسې وییو غونډ دی چې په یوه غونډله ییز یا غونډله پوهیز ( نحوي ) چاپېریال کې ځانته بېلابېله جولیزه خپلواکي ساتلای شي . د ساري په ډول له هر راز اوښتنې رااوښتنې سره مخامخېدای شي ، خو په ګډه چې کومه یوازېنۍ مانا ښندي ، نه شنل کېدونې

مانا بلل کېږي . دغسې یوه منځته راغلې ګډه مانا کله داسې وي چې د ټوکونو ( اجزاوو ) له بېلابېلو ماناوو سره څه نا څه ورته والی او اړیکې لري او د شننې ( تجزیه کېدلو ) پروخت یې ګډه مانا کورته له منځه نه ځي ، د چا خبره یو څرک هومره یې لالګېږي ، لکه : برخه اخیستل ، سرپه څنې کېدل ، مقصد ته رسېدل ، وروسته پاتېدل ، خوله په خوله کېدل ، پرمخ تلل ، لاسته راوړل یا راوستل ، له منځه وړل . . . او نور .

په دویم ډول ګړنو کې ګډه مانا داسې وي چې د بېلابېلو ټوکونو ماناوې یې ښکارندویې کولای نه شي او له ټوټه کېدو سره هرتوک خپلې ګوښې آرې مانا ته ورګرځي . کټ مټ ، لکه د یوه کېمیاوي ترنګ توکونه ( د ساري په ډول هایدروجن او اکسیجن چې یوهم ځانته د خپل ترنګ ( اوبو ) ښکارندویې کولای نه شي ) بېلګې یې ، لکه : غوږ رپول ، زړه مړېدل ، زړه ماتېدل ، زړه پخېدل ، سپینې ښوییدل یا تښتېدل یا غوټه کېدل ، پزې ته رسېدل ، سترګه رپېدل ، لاس ترزنې کښېناستل ، لاس پرسرکېدل ، لاس اخیستل او داسې نورې کنایي او مجازي ماناښندونې ګړنې .

دریېم هغه ګړنې دي چې د متلو او بولنو ( مقولو ) په ډول وي ، یا په بله وینا غوره وینا ، وجېزه ډوله یا مقوله ډوله ویناوې او متلونه وي ، دا مانا چې کومې کېسې ته نغوته کوي او هره یوه د ګړهار په بهیر کې د یوه ناشنونکي وییغونډ ( لغوي ګروپ ) په توګه ، لکه : یوه ګړنه کارول کېږي ، کټ مټ د شاعرانه ارسال المثل غوندې ، لکه : د کبرجام نسکوردی ، پلانکی او بیستانکی سره نوک او اوری دي ، پلانکی او بیستانکی د یوې سوړې ماران دي یا د یوې ځانګې / باغچې ګلان دي ، په یوه ګل نه پسرلی کېږي ،دایې هم په انارو ، خوند یې باران وړی دی ، د کوهي ختېه پر کوهي لګي ، وروري خوري به کړو حساب ترمنځ ، یوه بلا بلې ته وایي بو ، ښه ښه دي بد بد دي ، خپل عمل د لارې مل دی ، د جولا منډه تر موږي پورې وي ، لرې څه ژر راځه ، مه کوه پرچا چې وبه شي پرتا ، لاس چې مات شي د غاړې بارشي یا غاړې ته راځي ، پرتوګاښې تښتېدل ( خجالت کېدل ) یا ډارېدل ( ککړک ) ، پرپچه سپرېدل او کشمیر لیدل لور په لوټه تېره کول ، اوبه له ورخه تېرېدل ، اوبه په ډانګ ببلول ، په ناز لویېدل او په زیار زړېدل ، لکه په دې کړۍ کې :

چې په ناز لوی شي ، په زیارزړېږي زه په زیارلوی شوم ، په ناز زړېږم

له هسې عادي بولنو او متلونو سره د دغه راز ګړنو توپیر همدومره دی چې دلته بولنې او متلونه په جلا او خپلواک ډول د وینا له بهېره بهر ، د یوې کړې یا شوې وینا د ټینګار ، پخلي او جوتیا لپاره په څېرمه او سرباري ( اضافي ) ډول نه ؛ بلکې په خپله د آرې وینا یا یوه وینایيز یوون ( غونډلې ) د یوه نه جلاکېدونې ټوک او برخې په توګه کارول کېږي . له دې کبله د داسې تضمین شوي یا ګمارلي متل یا بولنې آره ښه تل خوندي نه پاتېږي .

( لکه په پاسني شعرکې ) ، خو په هرډول ، د يوې ګړنې غونډې د وينا يا غونډلې دننه د مانا او جولې له مخې بولنه شنل کېدونی وییغونډ او برخه جوړوي ، لکه : غرزی لاس ترزنې کښېناست . په دې غونډله کې ( لاس تر زنې کښېناست ) ګړنيز غونډ ( کل ) دی چې د يوې غونډلې ايښونی يې جوړ کړی دی ( ۱۰ : ۵۲ ، ۵۳ ) .

( ۲ )

اصطلاحي واحدونه هغه تعبيرونه دي چې هر ملت او ولس يې د خپل ژوندانه په چاپېريال کې د خپلو دودونو ، اخلاقو ، اروابينو ( روحياتو ) په چوکاټ کې په خپله ژبه کې رامنځته کوي . دغه واحدونه نه يوازې په خبرو اترو کې کارېږي ؛ بلکې په ليکليو اثرونو کې هم ستره برخه لري . اصطلاحات که له يوې خوا د ژبې د لغوي پانګې بشپړوونکې برخه ده ، نو له بله پلوه ، يو ادبي خوند او رنګ هم لري . اصطلاحات ( Idioms ) په کوم ځانله سبک پورې تړلی نه وي ؛ بلکې د ټولو سبکونو ترمنځه شريک واحدونه ګڼل کېږي .
په ژبه کې دغه ډول ترکيبونه ځانته جلا او بېلې ځانتياوې لري ، په دې مانا چې نحوي ترکيبونه ( Phrases ) او ژبني اصطلاحات ( فريزيولوژيکي واحدونه ) يو تربله توپيرلري ... اوس به وګورو چې دغه ژبني اصطلاحات ( Idioms ) پردې سربېره چې پکې د مانيزې ( سيمانتيکي ) موضوع له پلوه تربحث او غور لاندې نيول کيږي ، نو له نحوي پلوه د جوړښت له مخه څه ډول ترکيبونه دي او په ژبه کې څه ارزښت لري ؟ ( اصطلاحات ) دغه ډول ژبني ترکيبونه ، د ژبې خاص عنصر او ژبني خاص ډول څرګندونو ته ويل کېږي چې د زمانې په اوږدو کې د خلکو له خوا منځته راغلي او په ژبه کې ثابت لغوي ترکيبونه ( غونډونه ) دي . د دغو ترکيبونو اجزاوې دومره ثابتې او ټينګې اړيکې لري چې بېلول يې ګران دی .
اصطلاحات سمدلاسه د خبرو کولو پر وخت نوي نه جوړېږي چې د کوم ټاکلي مطلب د ښکاره کولو لپاره ور ځنې کاروا خيستل شي ؛ بلکې په جوړ شوي ډول د ژبې د ويونکو په حافظه کې ساتل کېږي او هرکله د اړتيا پر وخت ، د تيار جوړشوي وييز تړښت ( غونډ ) په ډول د مطلب د روښانولو لپاره ور ځنې کاراخېستل کېږي .
دغه اصطلاحات ثابت او ټاکلي دي ، د اړتيا پر وخت د جوړشوي غونډ په توګه کارول کېږي چې مجازي او کنايي مانا څرګندوي . په خپله دغه ډول غونډ نېغه مانا نه ورکوي ، لکه : ( لورپه لوټه تېره کول ) د دغه تړښت مانا په مستقيمه توګه نه څرګندېږي ، مګر په دويمه مجازي مانا سره ( چل ول کولو يا غړېت ، غولولو او وخت تېرولو ) په مانا راځي . بل مثال ، اوښ په بډه وهل ، لوی لاس لرل ، په همدې توګه ډېرمثالونه لروچې د پښتو ژبې وييزېرمه زياته شتمنه او بډايه ده چې راټولول او راغونډول يې ډېر زيارا و کارغواړي .

فرېزيولوژيکي واحدونه چې د ايډيم د اصطلاح پر ځای راځي ، د مانا او جوړښت له مخه دغه لاندې نښې لري :
۱ . ثابت داخلي ترکيب چې په ګډه يوه عمومي مانا او مفهوم څرګندوي . په اسمي او فعلي ترکيبونو کې يې ارزښت يوشان دی . فرېزيولوژيکي فعلي ترکيبونه که څه هم د مرکبو فعلونو په څېر ښکاري ، ولې له مرکبو فعلونو سره توپير لري ، ځکه په ثابتو فعلي ترکيبونو کې ټول يوه ګډه عمومي مانا ورکوي .
۲ . اصطلاحات له هغو توکونو څخه جوړېږي چې په دغه ثابت ترکيب کې خپله ټاکلې فرېزيولوژيکي ( اصطلاحي ) مانا له لاسه ورکوي . د بېلګې په توګه : لاروهل ، ژبه کول ، ژبه نيول ، غم خوړل او زړه خوړل . که د دغو مثالونو هره برخه يانې هريو توکی يې په جلا جلا توګه مانا کړو ، نو بيا هغه خاصه مانا او مطلب نه ورکوي ، ځکه په ( لاروهل ) کې د تګ مانا پرته ده ، په لغوي مانا سره ( لار ) او ( وهل ) کوم مانيز تړاو سره نه لري يا ( ژبه ) او ( کول ) سره جلا مفهومونه دي .
۳ . له ترکيبونکو عناصرو څخه عمومي مانا لاس ته راځي ، يانې ټول ترکيب د يوه واحد مفهوم په توګه مانا ورکوي .
۴ . په فرېزيولوژيکي واحدونو کې ځيني محاورې او متلونو هم راتلای شي او همدارنګه د ليکوالو او پوهانو غوره ويناوې هم پکې شاملې دي ، لکه : پوره ورک دې کړه دوه کوره ، د کبر کاسه نسکوره ده .
۵ . دغه ډول اصطلاحات ( ترکيبونه ) ټکي پر ټکي نه ژباړل کېږي .
۶ . هره ژبه خاص او جلا اصطلاحات لري .
۷ . فرېزيولوژيکي واحدونه د خپلو مانيزو خصوصيتونو له مخې ، له نورو ازادو ترکيبونو څخه توپير لري .
۸ . په هره ژبه کې دغه ترکيبونه ثابت وي ؛ نوي نه جوړېږي ، خو داسې ځانګړتيا څرګندوي چې ټولنه يې په مانا پوهېږي ، ځکه چې د ژبې د ويونکو له خوا منځته راغلي دي .
۹ . فرېزيولوژيکي واحدونه د نوروازادو تړښتونو ( ترکيبونو ) په څېر چې د ژبې په لغوي سيستم کې موجود دي ، مانيز او ګرامري خاصيت هم لري .
۱۰ . ثابت ترکيبونه د بشپړو جملو په څېر هم راځي ، لکه :
۱ . سترګې نه دي ، تيرې دي .
۲ . ابۍ مړه شوه ، تبه يې وشلېده .
د جوړښت له مخې کېدای شي دغه ترکيبونه ثابت نه وي ، خو د مانا له مخې يو نه تجزيه کېدونی ترکيب ( مجموعه ) ګڼل کېږي يا په بله وينا ، يوه ګڼه ( اصطلاح ) د کلمو داسې يوه غونډ دی چې په نحوي چاپېريال کې بېلابېله لفظي خپلواکي ساتی شي . البته هرډول ګرامري

بدلون پکي راتلای شي ، خو ګډه مانا چې د دغه ( غونډ ) له اجزاوو لاس تـه راځي ، نـه تجزیـه کېدونې مانا بـه وي . د مثـال پـه تـوګـه کـه مـونـږ د پښتـو ژبې یـو څو فـرېزیـولـوژیکي واحدونه پـه غـورسره وڅېړو ، نـو راتـه جوتـه به شي چې ځیـنې دغـه ډول ترکیبونه ، ثابتـه او مستقیـمه مانا نـه ورکوي ؛ بلکې پـه مجازي تـوګه مانا ورکـوي ، یانې مانیز اړخ یې له ټول تـرکیب نه لاس ته راغلی وي او له دې سره ګرامري بڼې هم ثابتې وي ، لکه :
۱ . له خوشحالۍ نـه پـه جامو کې نه ځایېدل .
۲ . تر بوسـو لاندې اوبـه تېـرول .
۳ . سپیـن سترګي کول .
۴ . جګ لـوکول .
۵ . پـه چپ اړخ پاڅېدل .
۲ . اورپـر اوبـو بلېدل .

د نومونو مثـالـونـه :
د اسمان کټ ، د اسمان پړک ، نوک او اوري ، د لستوني مار . له پورتنیو مثالـونو څخه څرګندېـږي چې پـه دغـو ترکیبـونـو کـې لـغـوي او ګـرامري بدلون نـه پېښېـږي ، پـه دې مانا چې د یـوه ټاکلي ویي پرځای بل ویی راتـلای نـه شـي . د مثال پـه تـوګه ( لاس وینځل ) یـوه ګړنه ده چې د انکارکولو پـه مانا ده او لاس تـه راوستـل هـم بلـه هغـه ده ، کـه د دغـو پـرځای داسې وویـل شـي ( لاسـونه وینـځل ) یا ( لاسـونو تـه راوستـل ) دلتـه ګورو چې فرېزیولوژیـکي مانا لـه لاسـه ورکوي ( ؟ ) او بیـا ازاد لغوي ترکیب جوړوي . پـه پښتـو ژبـه کې داسې ترکیبونه هم شتـه چې د یـو جز پـرځای بـل مترادف ویی راتـلای شي او د دغـې ګړنې پـه مانا کې بدلون نـه پېښـوي ، یانې لومړۍ برخه ثـابته او دویمه بـرخه کې بدلـون راځي لـکـه : زړه اچول او زړه غـورځول ، خـوا سـړېدل یا یـخېدل ، زړه ښویېدل ، زړه غورځېدل ، زړه لوېدل ، خوا سړول ، خـوایخول ، زړه تـشول یا خالي کـول ، زړه سـړول یا یـخول . هـمدارنـګه سورشیـن کېدل یا سـورشیـن اوښتـل ، تورسپیـن کېـدل ، تورسپیـن اوښتـل او داسې نـور . هـمدارنګه داسې ګړنې هم پـه پښتـو ژبـه کې شتـه چې د تـرکیب دویمه بـرخه یې ټاکلې او ثـابتـه وي ، مګر پـه لـومړۍ برخـه کې یې جلا مترادف الفاظ راغلي وي .
۱ . تـنـدر پرېوتل او ټکه پرېـوتل .
۲ . قـول کول ، لوز کول ، ژبـه کول ، وعـده کول .
پـه دغـو مثالـونـو کې ګـورو چې دغه لفظي بدلون د ګړنې پر مانا کومه اغېـزه نـه کوي او مانا ورسـره نه اوړي .کـه ووایو ( ساړه اسوېلي کول ) یا ( سوړاسوېلي کول ) . پـه نـوموړې ګړنې کې لـه ګـرامـري پلوه د جمع پـر ځای مفـرد راغلی دی ، مګـر بیا هم پـه مانا کې کوم بـدلون نـه لیـدل کېږي .

د پښتو ژبې په ګړنو کې داسې ترکيبونه هم شته دي چې که د ترکيب د يوې برخې پرځای يوه بله کلمه راوړل شي ، د ثابت ترکيب په توګه به وي ،خو د مانا له مخې به توپير وکړي ، لکه :
۱. هغه ترکيبونه چې لومړۍ برخه يې بدلون او دويمه برخه يې پرځای وي . د ( زړه تورېدل ) په ګړنه کې د ( زړه ) پرځای ( سترګې ) ( سترګې تورېدل ) . همدارنګه مخ ( مخ تورېدل ) راشي ، نو بيا د ترکيب په مانا کې بدلون راځي .
۲ . هغه ترکيبونه چې دويمه برخه يې بدلون ومني ، خو لومړۍ برخه کې هماغه ټاکلی ويی وي ، دلته له مانيز پلوه ډېر توپير پکې راځي .
زړه کول ، زړه ساتل ، زړه وهل ، زړه وړل ، زړه ايستل ، زړه لوېدل ، زړه ماتېدل ، زړه تشول ، زړه خوږېدل ، زړه چاودل يا سر ( خوړل ، خوږول ، ګرځول ، غړول ، ماتول ) . لاس ( لګول ،اخيستل ، رسېدل ، پورې کول ، نيول ) .
په پښتو ژبه کې داسې ګړنې هم وينو چې پر مجازي او کنايي مانا سربېره ، لغوي يا مستقيمه مانا هم ورکوي ، لکه : ( تاراچول ) .
الف . په لومړۍ لغوي مانا کې ښکاري چې تار په ستن کې اچول دي .
ب . په دويمه مانا کې د اشنايۍ ، دوستۍ او رابطې په مانا سره ، لکه :
د فلانکي سره يې تار اچولی دی . همدارنګه ( تنۍ شلول ) :
الف . د کميس تنۍ وشلېده .
ب . تنۍ يې سره وشلولې .
پــه دويمه مانا کې موخه شخړه او جګړه ده ( ۶ : ۷۰ - ۷۵ ) .

( ۳ )

اصطلاح يا محاوره چې موږ ورته په نوې نومونپوهنه ( Terminology ) کې ګړنه وايو ، د يوې ګړنۍ او ليکنۍ ( شفاهي او تحريري ) ژبې ـ نظم او نثر دواړو ـ په مستعاره او سېمبوليزه شتمنۍ کې يو پاموړ او ارزښتمن توکی او لامل ګڼل کېږي . په تېره په شاعرۍ کې خو يې شتون د ولسي او ادبي ژبې ترمنځ ديوه پياوړي او غښتلي پيوستون کارکوي .
اصطلاحات او محاورې هغه تعبېرونه دي چې يو ولس يې د خپل چاپېريال دودونو،کړو وړو او سابيز ( رواني ) غوښتنو له مخې په خپله ژبه کې ځايوي او رامنځته کوي او د خپلو موخو ( اهدافو ) لپاره يې استعاره کوي . د اصطلاح په راوړنه او کارونه ، د اورېدونکي سوچ او اند ( فکر ) وار له واره د کاروونکي د موخې پرلور ورځي او بې له دې چې ويونکی يا ګړېدونکی خپله موخه ډانګ پېيلې ووايي ، ګړنه او اصطلاح يې د زړه خبره ډاګيزه کوي او انځوروي .

ګړنه د ژبني جوړښت له مخې هغه لغوي ترکیب دی چې له رنګارنګو مانااوالو ( دوو یا ډېرو ) وییو او الفاظو رغېدلی وي او نااټکلېدونی لرغونتوب لري.
ګړنه کوم ټینګ، غښتلی او ناشنونی ( ناقابل تجزیه ) تړښت او ترکیب نه دی؛ بلکې د نوي چاپېریال، دریځ او موقعیت له مخې بېلابېل جولې او بڼې اخلي، خو په ګډه چې کومه یوازېنۍ مانا رامنځته کوي، هغه نه شنل کېدونکې مانا بلل کېږي ( ۱۲ : ۵ ).

## ګړنې او متلونه

یو له خورا پېچلو اوکړکېچنو موضوعاتو هم د ګړنواو متلونو توپیرول او جلاکول دي، په تېره بیا هغه وخت چې یو ډول ماناوې سره ولري.
په پښتو کې متل کټ مټ هغه شي ته وايي چې په عربي یې مثل بولي، ښايي چې متل له عربي څخه مفغن شوی وي. ځکه چې کله په پښتوکونه کې ( ث ) په ( ت ) بدلېږي، لکه: میراث چې میرات شو. د عربي لغت پوهان وايي چې مثل او نظیر او دا کلمه له عربي مثل څخه جوړه شوې او پر ټولو حکمتو او لنډو کیسو او اساطیرو اطلاق شوه.
د پښتو ادب یو مهم توک دغه متلونه دي چې په لنډو ویناوو کې حکمتونه او د ګټې خبرې ځای شوي دي. په متلو کې د ملتو د اروابینو ( روحیاتو ) خورا ښې ښې نکتې پرتې وي او ځینې پوهان وايي چې ترشعر لا متلونه د ملتو پر پوهه ښه دلالت کوي. ولې چې اشعار د داسې خلکو له مربو راوځي چې فکر، ذهن او پوهه یې تر عوامو لوړه وي. اما متلونه د عوامو له تفکره حکایت کوي او د متلو الفاظ لکه اشعار مصنوعي او تورل شوي نه وي او د ولس په ژبه وي؛ نو متلونه د وګړو رېغ ګڼلی شواو پر روحیاتو یې دلالت ترشعر ټینګ او د وېسا وړ وي. متلونه د ملتو د اجتماعي ژوندون او د دوی د عقلي هویت ښکارندوی دي. په مختلفو اوضاعو او کیفیاتو کې د تجربو او ازمېښتونو پایلې په لنډو کلماتو کې ځای شوې دي ( ۲ : ۱۸-۱۹ ).
د هر ولس په شفاهي ادب کې متل ( ضرب المثل ) مهم ځای لري. د بډایو ژبو یو خصوصیت دادی چې په متلونو هم بډای وي. متل د خبرو یوه ببخي لنډه جمله ده چې د مانا له پلوه بشپړه او د مفهوم او مورد له مخې عامه وي.
د متل بلاغت او فصاحت په دې کې دی چې د جولې له مخې لنډ او مؤجز، د مانا له پلوه مستعار او کنایه، د افهام له مخې ساده او عام فهم او د افادې له پلوه په ښه رسا او سم لګېږي.
ماکسیم ګورکي د متل په باب ویل: " په لفظي ساده ګۍ کې یې تر ټولو لویه هوښیاري او حکمت ځای شوی دی، متل او سندره همېشه مؤجز وي، خو د بشپړ کتاب هومره تفکر او احساس پکې وي. " ده به لیکوالو ته مشوره ورکوله چې لیکوالي له متل څخه پیل او زده کړي چې الفاظ

پکې داسې کښېښکل شوي وي ، لکه په موتيو کې گوتې . متل ( چې پښتانه ورته د هوښيارانو خبره هم وايي ) خبره خوندوره کوي او د هغې مفهوم د مضبوتيا او غبرگون غوندې دی .
متل اصلاً د يوه هوښيار او حکيم عاقلانه (( مقوله )) وي چې په قصدي يا اتفاقي ډول يې له خولې وتلې وي ، خو بيا د لفظي ښکلا او مناسبت او مانيزې حکيمانه افادې او ارزښت په برکت د ولس په ژبه جاري او خوندي ساتل شوی وي . د متل لومړی ويونکی د ولس له نظره لوېدلی وي ، خو وينا يې د شفاهي ادب يوه ارزښتناکه برخه گرځي .
د متل په مرکز کې د گرامر له مخې يو شخص (( غالباً مفرد غايب يا مخاطب )) ځای لري ، خو د ويونکي او هم د اورېدونکي په فکر کې د هغه مورد ښېخي عام وي . متل د ولسي نړۍ ليد ، تفکر او ذهنيت بېل بېل اړخونه انځوروي ، تاريخي وي ، لکه :
( که ته نازو شې ، نو ميرخان به څوک وزېږوي ؟ ) جغرافيوي وي ( پېريانو ته غزنی څه شی دی ؟ ) اخلاقي وي ( چې بد گرځې ، بد به پرځې ) مذهبي وي ( چې اوبه وي ، تيمم ته حاجت نشته ) اقتصادي وي ( له خپلې بړستنې سره پښې غځول په کار دي ) او نور .
د متل ستر خصوصيت دادی چې همېشه کنايي مانا افاده کوي ، که خپله اصله او حقيقي مانا افاده کړي ، هغه بيا متل نه دی . مثلاً : ( که غر لوړ دی ، پر سر يې لار ده ) ( د غله په رېره خلی وي ) ، ( په يوه گل نه پسرلی کېږي ) . دلته يو متل هم په خپله لومړۍ مانا نه دی او نه د ( لوړغر ، په سر يې لاره ) ، ( غل ، رېره ، خلی ) ، ( گل ، پسرلی ) ترمنځه ارتباط ملحوظ دی چې د متل حقيقي مانا ده ؛ بلکې دلته هر متل خاص کنايي مفهوم لري چې هم اورېدونکی پرې پوهېږي او هم د ويونکي مطلب وي او هغه د متل کنايي مانا ده که کنايي مانا افاده نه کړي هغه متل بللای نه شو .
په پښتو کې عموماً دوه ډوله متلونه موندلای شو :
الف _ منظوم متلونه : دا ډول متلونه د يوه بيت حکم لري چې هم د قافيې او هم د سيلابونو له مخې تر يوې اندازې مقيد او خاص آهنگ او تال لري ، لکه :

بد به دې په زړه لرم
سلام به دې په خوله لرم

×××

که په کور کې غوړه مومي
ليونی به غرو ته درومي

×××

سل روپۍ پور کړه
دا ختر شپه په کور کړه

ب ـ منثور متلونه : دا هغه متلونه دي چې د سیلابونو په شمیر او د قافیې په مراعات مقید نه دي او عروضي اساس نه لري ؛ بلکې مسجع نثر ورته ویلای شو دا په خپل منځ کې له نحوي پلوه په دوه ډوله دي :
الف ـ چې بشپړه جمله وي ، مسند او مسندالیه یانې فعل او فاعل یا مبتدا او خبر ولري . دې ته په انګلیسي کې ( Proverb ) او په روسي کې ( پسلوویڅه ) ویل کېږي . دا هغه مستعاره بشپړه مقوله ده چې کنایي مفهوم افاده کوي او غالباً اهنګین ( سندریز ) فورم لري ، لکه :
که غر لوړ دی ، پر سر یې لار ده .
ب ـ هغه چې بشپړه جمله نه وي او له نحوي پلوه د کلام یو مهم جز ونه لري ، خو نور د متل تر تعریف لاندې راځي . دې ته په انګلیسي کې ( Saying ) او په روسي کې ( پګه وورګه ) ویل کېږي ، لکه :
زه ستا دارو ـ ته زما دارو .
اوړه دې په اوړه ـ منت دې په څه .
خپل عمل ـ د لارې مل .
خپل وطنه ـ ګل وطنه .
دغه ډول ته ځیني خلک محاوره وایي ، خو د پښتو او دري د ولسي ادب په کتابونو کې عموماً د متل په نامه یاد شوي او په کوم توپیر ورته کتل شوي نه دي . متل کله یوه جمله وي ، لکه : د غله ځای په غره کې هم نه شي . کله دوه جملې وي :
ړانده ته مه ګډېږه ـ کاڼه ته ډول مه وهه .
کله چې متل له دوو جملو څخه جوړ وي ، د دواړو جملو ترمنځه ، د عطف مانیز تړاو موجود وي ( د عطف ویبکي لوېږي ) لکه :
کوتک وهه د ورور لپاره ـ خبره کوه د خدای ( ج ) لپاره .
یا داسې نور تړاوونه سره لري چې دویمه غالباً د لومړي تابع جمله وي . ډېر لږ متلونه له دریو جملو هم جوړوي ، لکه :
( د کونډې کره زوی نه و چې زوی یې پیدا شو ، مرګو ګډه شوه ) ( ۴ : ۵۲ ) .
متل هغه عام آهنګین او مؤجز کلام دی چې پر حکمت بناء وي او د عمومیت ، آهنګ او ایجاز په ګاڼه پسوللی وي . که لنډې د پښتنو ښکلاییز تولنیز شعورانځوروي ، نو متلونه عقلاني او فلسفي خوا ښیي . ښاغلی قیام الدین خادم د متل د ویي په باب لیکي : " د متل د ویي اصله مانا ماته معلومه نه ده ، خو د عربي د مثل او ضرب المثل مانا روښانه ده . زه ویلای نه شم چې متل به له مثل نه جوړشوی وي ، مګر د مثل په مانا سړی پوهېږي چې دا هغه بدیعه حکیمانه جمله ده چې د تشبیه ،کنایې او مثال په ډول د کلام د تحکیم لپاره راوړل کېږي .... "

خادم صاحب د مثال لپاره دا لاندې متل راوړي : " چې ځې ، ځې ابازو ته به راځې ".
د مضمون له مخې د پښتو هر متل يوه ګټوره وجيزه ده . د پښتنو روحيات او ټولنيز ژوند پکې په ښه توګه ځلېږي او د ولسي ادب هغه بډايه پانګه ده چې د ټولنيز ژوند ټولې خواوې پکې ښکارندې شوې دي . د مينې او ښکلا ، وصال او بېلتون ، خوښۍ او خپګان ، اخلاق ، تاريخ او جغرافيې ، مذهب ، اقتصاد ، عدالت ، هېوادپالنې او نورو فکرونو مخزن دی .
په متلونو کې د يوې ټولنې ډېر پټ دننني رازونه پراته دي او پښتنو ته ډېر ارزښت لري ، ځکه دا وينا د ټولنې هغه ګډ او ټولنيز مضمون دی چې د ټولو له خوا د عقل او پوهې له مخې سنجول شوی ، د ټولو له خوا منل شوی او په سيمه کې يې د کلونو کلونو په تېرېدو ريښې پخې شوې دي .
ددې لپاره چې يوه وينا د متل په نامه ياده شي او بيا د ټولو له خوا د منلو وړ وګرځي ، بايد ساده او د ولس په ژبه وي ، ښه اهنګ ولري ، په غوږونو ښه ولګي ، په مغزو کې سملاسي ځای ونيسي او زړونه يې ومني . د همدې مقصد لپاره په يوه متل کې تل درې شيان ؛ خوږوالی ، لنډوالی ، موخه او مفهوم اړين بلل شوي دي ( ۳ : ۸ - ۱۱ ) .
متل هغه لنډه جمله يا عبارت دی چې د يوې انساني تجربې او کتنې بيان پکې په ډېره په زړه پورې ، ښکلې بڼه او انداز شوی وي .
د متل عبارت ساده او روان وي ، خو ډېره ستره او ژوره مانا او مفهوم پکې نغښتی وي . دا د انسانانو د مغزونو خبرې دي چې د دوی د ټولنيز ژوند له پخو تجربو څخه رازېږېدلې دي .
متلونه د يوې ژبې د ولسي او شفاهي ادبياتو ستره او ارزښتناکه برخه ده . اصلي جوړوونکي او رامنځته کوونکي يې هم معلوم نه دي ، د ټول ولس ګډمال دی . هرمتل په خپل شاليد کې يوه پېښه ، کېسه او د ژوند پخه تجربه لري چې د هغې نتيجه او نچوړ ، د پند او عبرت لپاره ، خوله په خوله له يو نسل څخه بل نسل ته لېږدېدلي او د کاڼي کرښې ګرځېدلې دي ، نو ځکه يې خلک په خبرو اترو کې د خپلې وينا د منطقي او باوري کولو لپاره کاروي .
ځينې متلونه په نظم وي چې وزن او قافيه لري او ځينې بيا په نثر وي چې د وزن او قافيې له قيد نه خلاص وي ، خو دواړه ډولونه له پوره فصاحت او بلاغت نه برخمن وي .
د يادونې وړده چې زموږ زياترو پخوانيو شاعرانو په خپلو شعرونو کې د شعري قوت د لوړتيا لپاره متلونه راوړي او د ځينو مشهورو شاعرانو د شعرونو ځينې بيتونه او يا نيم بيتي په خلکو کې د متلونو په بڼه کارېږي ( ۱۵: ۵۶، ۵۵ ) .
که پورتنيو څرګندونو ته ځېرشو ، د متلونو په باره کې يوازې پر مانيز او موضوعي اړخ ډېره څېړنه شوې ، جوليز او ګرامري هغه يې ژور څېړل شوی نه دی .
ژبه د انسانانو د ذهني ښکارندو د څرګندونې يوه غوره وسيله ده ، له همدې امله کېدای شي ډېر ژبني يوونونه سره ورته دندې ترسره کړي ، نو له مانيزاو موضوعي پلوه د ژبنيو يوونو وېشون

گرانه خبره ده ، ځکه ټول ژبني یوونونه د ذهني ښکارندو د څرګندونې کالبونه دي ، ګړېدونکي د دغو کالبونو په مرسته خپل ذهني توکي اورېدونکي ته وړاندې کوي یا وراوروي . په هره توګه هڅه کوو د متلونو او ګړنو ( Idioms ) ترمنځ د توپیر کرښه په لاندې څرګندونو سره پیاوړې کړو :
متلونه هغه ژبني یوونونه دي چې د انساني ژوند د بېلابېلو اړخونو څرګندویي کوي . نږدې ټول هغه موضوعات چې انسانان یې په ژوند ، ذهنونواوفکرونو کې لري ؛ متلونه یې رانغاړي . متلونه یو نصیحت لرونکې وینا یا غونډله ده . پښتو متلونه بیا له مانیز او منځپانګیز اړخه د پښتني چاپېریال انځورګري او څرګندونه ده . متلونه د جولې له مخې د غونډلې په څېر رغنده توکي لري . د وینا په دواړو ډولونو ( نظم و نثر ) کې شته . تل جوت او نه اوښتونکي دي ، خو کېدای شي په نظم او شعر کې یې رغنده توکي خپل ځای وونجوي او له نوي چاپېریال سره ځان سم کړي ، خو بیا هم هر رغنده توکی په هرځای کې چې وي ، ټولیزه مانا نه اغیزمنوي .
کله ناکله کېدای شي په متلونو کې ځینې توکي د ښکلا په موخه وغورځي ، په دې مانا چې ځینې ګړونه او ویېونه د متل د ویلو پروخت ونه ویل شي ، خو د خپلمنځي پوهاوي پر وخت کومه نیمګړتیا نه پېښېږي ؛ اورېدونکی پرې پوهېږي ، لکه : زه په تمه ( یم ) ، ته بې غمه ( یې ) . دلته د وزن ، قافیې او ښکلا لپاره ( یم ) او ( یې ) مرستیال کړونه غورځېدلي دي یا ،لکه : د کور ګټه ، د لاهور ګټه ( ده ) . دلته هم ( ده ) د ښکلا ، قافیې او وزن په موخه غورځول شوی دی .
که د متل لپاره یوازې یو شکل او جوله غوره شي چې له نورو ژبنیو یوونو سره غوڅ او جوت توپیر ولري ، نو د متل ، ګړنې ( Idiom ) او نورو ژبنیو یوونو ترمنځ ورته والی او ګډوالی به له منځه لاړشي چې تر دې دمه یو کړکېچ دی . د درنولیکوالو په وړاندېنیو لیکنو کې تر ډېره متل ته یوه جوله غوره شوې نه ده ، د بېلګې په توګه :
ځینې شعري یا نظمي ډولونه ( لنډۍ یا یو بیت ) هم د متل ترسرلیک لاندې راوړل شوي چې فکر کوم متل ته د یو بېټې او جولې ټاکنې په برخه کې لا خبره تیاره کوي . هر ژبنی یوون چې وګړي یې د خپلو خبرو او وینا په بهیرکې د وینا د ښکلا ، اغیز او پیاوړتیا لپاره کاروي ؛ متل بللی نه شو ، لکه : یو څوک چې د یوې موضوع د روښانتیا لپاره د قرآنکریم یو آیت ، د حضرت محمد ( ص) یوه وینا ، شعر ، نکل ، د پوهانو ویناوې او نور څه وایي ټول یې متلونه نه دي ، کېدای شي له څو پړاوونو وروسته ، د متل د جولیزې او مانیزې ځانګړتیا ، له راخپلولو وروسته یې متل وبولو .
ځینې متلونه چې وړاندې په نثري یا نظمي بڼه وو ، کېدای شي کوم شاعر په خپل شعر یا نظم کې کارولي وي چې غوړې لا غوړې کړې چې په بدیع کې ورته ارسال المثل وایي . دغه ډول شعرونه هم متلونه بللای نه شو ؛ بلکې په کارده د متل آره بڼه ترې وابستل شي . همدارنګه

کېدای شي د ځينو متلونو آره بڼه له منځه تللې وي او هغه بيت چې شاعر پکې هغه متل راوړی ، پاتې وي او د منظومو متلونو برخه گرځېدلې وي .
لکه چې وړاندې مو وويل ، متلونه کېدای شي د وينا په دواړو ډولونو( نظم او نثر ) کې شتون ولري ، ياني کېدای شي منثور وي يا منظوم ، ځکه که متل د پوهانو او هوښيارانو د تجربو زېږنده وبولو ، نو دا بيا په دې پورې تړلې ده چې د متل لومړنی ويونکی د يوې ژبې عادي هغه دی او که يو شاعر يا شاعروزمه يا هم ناظم ، که خبره لا روښانه او څرگنده کړم ، داسې چې :
که د متل لومړنی ويونکی ناظم يا شاعر وو ، نو څرگنده ده چې متل يې هم د نظم او شعر په بڼه دی او که عادي ويونکی ، متل يې هم عادي نثر ، خو بيا هم متل د عادي او ورځنيو خبرو په څېر بللای نه شو ؛ بلکې يو ځانگړی جوليز او مانيز جوړښت لري . متلونه د پښتو لنډيو په څېر لنډ او کوچنی فورم دی چې پراخې مانا وې لري او يوه ستره پېښه او کيسه رانغاړي .
متلونه تر يوې پېښې يا کيسې وروسته ويل شوي ، يوه اوږده او پراخه موضوع په لنډ شکل کې ځايوي . له همدې کبله پرې پوهېدنه يوڅه ستونزمنه وي . له بلې خوا ، متلونه مانيز پراخوالی لري ، په دې مانا چې که د متل کيسې يا پېښې ته چې ترمتل وړاندې پېښه شوې وي ، وکتل شي ، نو ښايي متل تنگ او راټول کړي او پر هماغه ځانگړې موضوع يې وڅرخوي ، خو د متل شکل او رغښت دا برېد ماتوي او داسې څېره غوره کوي چې د پراخو او ډېرو موضوعاتو د جوتيا جوگه شي او هرڅوک يې له خپلې موضوع سره په تړاو کې ووايي .
د متلونو پروړاندې گړنه ( Idiom ) يو داسې يوون دی چې دا د يوې غونډلې ( Sentence ) نه ؛ بلکې د يوه غونډ ( Phrase ) بڼه يا جوله لري . همدارنگه له مانيز پلوه هم نيمگړې وي . گړنه د غونډلې يوه برخه وي ، په داسې حال کې چې متل يوه بشپړه غونډله ( جمله ) وي . لکه چې وړاندې مو وويل د متل موضوع يو ډول نصيحت او د يوې غوره وگړنۍ تجربې پايله وي ، خو گړنه بيا داسې تړلې نه ده ، ټول ټولنيز موضوعات رانغاړي ؛ نه يوازې نصيحت ، وجيزې او وراشې .
نن سبا زموږ د ژبې زياترو ليکوالو گړنې او متلونه سره يو کړي دي اوگړنو هم د متلونو ځای نيولی دی او زياتروکتابونو کې په همدې ډول څېړل شوې دي . مگر که چېرې د خپلې ژبې پر تاريخ يوه څه وړاندې نظر واچوو او غور پرې وکړو ، نو دابه راته څرگنده شي چې پخوا متلونه د گړنو( اصطلاحاتو) په څېر نه وو ؛ بلکې د متل په دواړو برخو کې به يوه څه همغږي وه ، لکه : ژرنده که د پلارده _ هم په وار ده چې و يې غواړې په خوله _ نو وبه يې خورې په څه ، چې څه کرې _ هغه به رېبې . خو نن سبا گړنې هم پر متلونو گډې شوې دي او د متلونو ځای يې نيولی دی ، لکه : ترکاڼي د ببزو کار نه دی ، کوږ بار ترمنزله نه رسېږي او داسې نور

داډول لفظي جوړښتونه پخوا ګړنې بلل کېدې ، ځکه چې په دې ډول لفظي جوړښتونو کې لومړۍ دوې برخې نه شته او دویم داچې همغږي پکې هېڅ ارزښت نه لري چې په همدې اساس داهم ګړنې بلل کېږي چې د ډېر استعمال له مخه اوس د متلونو په چوکاټ کې راغلي او مانیز ارزښتونه یې هم دومره زیات شوي چې د متلونو ځای یې نیولی او د نورو متلونو په شان په ژبه کې کارول کېږي ، خو کومې ګړنې چې دلته مونږ تر بحث لاندې نیولي دا هم د هغه نورو ګړنو په شان ارزښت لري او ویونکي یې په همدې غرض ترې کار اخلي .

البته زما داخبره ښایي سل په سلو کې اوس رښتیا نه اوسي ، ځکه په دې ګړنو کې تراوسه ټولې د متل ځای ته ور رسېدلې نه دي او د همدغې ګړنې په شکل کارول کېږي چې زمونږ موخه او هدف همدغه ډول ګړنې دي چې بېلګې یې دادي :

لورپه لوټه اچول یا لور په لوټه تېره کول .

اوبښ په بډه منډل یا اوبښ په بډه وهل .

چې پورته دواړه ګړنې خپله مانا په مستقیمه توګه نه ځرګندوي ؛ بلکې په دویمه مجازي مانا سره کارول کېږي چې لومړۍ یې د ( چل ، فرېب او غولولو ) په مانا کاربږي او دویمه ګړنه یې ( پر واقعیتونو د سترګو پټولو) مانالري او هغه څوک چې نورغولوي او یا په ښکاره واقعیت سترګې پټوي ، نو خلک ورته دا دوه ګړنې د دلیل او ګرمولو( ملامتۍ ) لپاره په خپلو خبرو کې وایي ( ۱: ۱۰۱، ۱۰۰ ) .

## د ګړنو، څرګندنو او نومونو جوړښتونه

وړاندې مو د بېلابېلوسرلیکونو په ترڅ کې درې ډوله ژبنې جوړښتونه او یوونونه (Idiom , Term او Expressions ) وڅېړل چې په ګړنه ( Idiom ) یا ځانګړې څرګندونه ( Idiomatic Expression ) باندې هم څه ناڅه وګړېدو ، دلته لاپسې وړاندې ځو :

ګړنه ( Idiom ) هغه غونډه ، ترکیب او عبارت ( Phrase ) دی چې ټولیزه مانا یې د رغنده توکو له ماناوو سره توپیر لري ، لکه : ( پزه پرېکول ) چې ګړنۍ ، ځانګړې یا اصطلاحي ( Idiomatic ) مانا یې ( شرمېدل او رسواکېدل ) دي او آره مانا یا له رغنده توکو څخه راوتلې مانا یې د ( پزې غوڅېدل یا پرې کېدل ) دي .

ګړنه د یوه ویناییز یوون په توګه ټول ژبني توکي په خپل رغښت او جوړښت کې ځایوي ، هغه څه چې یوه غونډله رغوي ، په ګړنه کې هم راتلای شي لکه خپلواک او ناخپلواک ګړونه .

ګړنې د ژبې ځانګړي جوړښتونه دي چې د نورو ژبنیو جوړښتونو لکه : نومونو ستاینومونه ،کړولونه ، نومځرو او کړونو( فعلونو ) په څېر روښانه ، سیده او مستیقیمه مانا نه ورکوي . له

رغنده توکو ځخه یې مانا اخیستل هم تر ډېره ناشوني دي ، ځکه هغه ویې چې یوه ګړنه جوړوي ، خپله عامه مانا نه لري ، په ګړنه کې رغنده برخې په تړلي اوترکیبي ډول یوه جلا او ځانګړې مانا لري . ګړنه یو ویی نه ؛ بلکې څو ویي او وییکي وي ، یانې یو تړښت وي . کېدای شي دوه درې یا تر دې ډېر . همدا د ګړنې جولیزه اومانیزه ځانګړنه ده چې په ډېرو ژبو کې ورته ده .ځینې وییونه داسې وي چې څو ماناوې لري . ځینې ویونکي یې په یوه مانا او نور یې پـه بله مانا کاروي ، خو ګړنه یې بللای نه شو . د بېلګې په توګه د ( لوخ ) ویی . دا ویی د پارسۍ ( لوچ ) پښتو شوی هغه دی ، پښتو کې یې هممانیز ( بربنډ ) دی . ځینې ویونکي یې داسې کاروي : ( یوه ډله غله چې په لویه لاره راوتلي وو ؛ مونږ یې لوخ کړو ) . که څه هم دلتـه د ( لوخ ) پرځای د ( لوټ ) ویی ورږ ښکاري ، خو د ( لوخ ) ویی هم بې مانا نـه دی . مانا یې داده چې ( غلو له مونږ هرڅه یوړل ) لکه څوک چې له چا جامې او کالي وباسي ، خو بیا هم دا د ( لوخ ) ویی چې کېدای شي ویونکی ترې په بېلابېلو ځایونو کې بېلابېلې ماناوې واخلي ، ګړنـه بللای نه شو .

بل ژبنی یوون څرګندنه ( Expresion ) ده چې دا هم ګړنې ته ورته جوله او جوړښت لري ، دا هم یو تړښت دی ، تر یوه ډېر وییونه او وییکي لري ، خو مانا یې بیا لکه د ګړنې ، له رغنده توکو ډېره لرې نه وي ، لکه : برخه اخیستل ، مخامخېدل او نور .

په همدې توګه نومونه ( Term ) هم وړاندې وڅېړل شوه چې دا جوړښت بیا له ګړنې ( Idiom ) او څرګندنې ( Expresion ) سره توپیر لري . توپیر یې دادی چې دا جوړښتونه د ګړنو او څرګندنو په څېر هاغسې نه دي چې رغنده توکي یې پـه یوه تړښت کې ځانګړې مانا خپله کړې ؛ بلکې یوه ښکارنده نوموي .

کېدای شي یوه نومونه ( Term ) یو ساده جوړښت وي او یا هم تړلی ، لکه : ( اور ) یوه پوځي نومونه یا اصطلاح ده چې یو ساده او یوستوی ویی دی او ( سترپاسوال ) هم یوه پوځي نومونه ده چې درې ټوکه ( ستر ، پاس ، وال ) لري او یوه مرکب ویی دی .

دا ډول نومونې ( اصطلاحات ) هغه ویي دي چې کېدای شي له وړاندې په عامه ژبه کې موجود وي ، د ژبې یوه عادي ویی او نـوم وي ، خو کله چې یوه پوهه او څانګه رامنځته شوې ، د هغې پوهې او څانګې اړوند پوهانو ترې په خپلو پوهنیزو او څانګیزو چارو کې نوې ګټنه کړې ده . له دې امله د لومړنۍ او دویمنۍ مانا ترمنځ مانیز نږدېوالی راتلای شي ، لکه : ( ننبه ) چې د عامې او عادي ژبې ویی دی او اوس د ( سېمبول ) پرځای په بېلابېلو ځایونو ( کېمیا ، ژبپوهنه او ټاکنیزوچارو ) کې هم کارېږي .

نومونې ( Terms ) کله داسې ویي هم وي چې وړاندې په عامه ژبـه کې نه وي او نـوې جوړېږي چې داچاراو پروسه بیـا په ژبپوهنه کې نیولوګېزم بولي ، لکه : په پوهنتونو او ښوونیزو چاروکې کارېدونکې نومونې : ښوونکی ، ښوویالی ، پوهیالی ، پوهنمل او پوهاند چې په هېـواد کې د ښوونیزو چارو او پـوهنتونو لـه جوړېدا او پیلېدا سره تړاو لري ؛ هغـه وخت چې پـورتنۍ چارې په

هېواد کې رامنځته شوي او نوې ښکارندې رامخته شوي ، نو د پوهانو له خوا ، د اړتيا پر بنسټ نومونې هم ورته جوړې شوي دي .

دا چې د جولې لـه مخې نومونې ( Terms ) نومونه دي او پر جلا برخو وېشل يې راته شونې نه ښکاري ( يوازې له ځانګيز پلوه ډلبندي کېدای شي ) نو يـوازې ګـړنې ( Idioms ) يې وېشو :

ګړنې ( Idioms ) د رغنده توکو د جوليزې ځانګړتيا له مخې پر دوو برخو وېشل کېږي چې نوموالي ( اسمي ) او کړوالي ( فعلي ) يې بولو . په دې وېشنه کې د ګړنې وروستی توکی په پام کې نيول کېږي . که چېرته نوم وي نوموالـه او کـه کړ يا کړنومی وي کړواله يې بولو :

الف . نوموالې ګړنې Nominal Idioms :

دا برخه هغه ګړنې ( Idioms ) رااخلي چې رغنده توکي يې نومونه او د هغه څلورګونې ډلې ( ځيزنوم ، ستاينوم ، شمېرنوم ، نومځري ) وي . نوموالي ګړنې نه يوازې په خپل جوړښت کې نومونه لري ؛ بلکې وييکي ( ادات ) هم لري ، خو يوه ستره ځانګړنه يې داده چې کړ نه لري چې همدايې له کړوالو هغو جلا کوي :

د نوموالو ګړنو ( Idioms ) څو بېلګې :

- تـش تـپاک : چل ول .
- نيمګړی نيت : د چا په اړه ناسم نيت يا سوچ ، بېلوري او بدنيتي .
- تش مهر او ډک مهر : لږ مهر ، پوره مهر .
- د خيال کـرې پګړۍ : د ښاخ او غرور ښکارندويي .
- په سپېرو ايرو لړلی : تور تپی اوښتی ، خيرن پيرن .
- بدو ته شين : بدو کړو ته بېلودی او چمتو .
- په وازدو پټ / ډک : خورب ، چاغ .
- د زړه رنځ د مړو شرم : د داسې بد وګړي لپاره چې کړه وړه يې د زغم نه وي .
- د مرګ لـه لاسه : د مرګ له کبله .
- چېرې يوځه چېرې بل ځه : يو ځه بل ځه سره نه پرتله کېدل .
- ويده بخت : بدبخت ، ناسم بخت .
- نرۍ ناره : ټيټه يا ورو ناره .
- تېرې بېرې خبرې : ناسمې او ګډوډې خبرې .
- تشې دوړې : يوازې خاورې دوړې ، خوشې چارې .
- د چا تر نظرپورې : د چا په نظر يا اند
- بځرې ( او ) وچې سرې : سره اړوپېچ يا ضد و نقيض .
- ځای دی ځای : که ځای دی خو همدا دی .
- مخ يې تور ږيره يې کله : رسوا او شرمېدلی .

- د باد وږی/ د باد بنګه : څپڅپاند یا بې ټپکه او یا سپکول .
- یو زړه او زریاری : ډېرهوس او تر اړتیا او توان زیاتې هېلې او غوښتنې .
- ډکه ښځه : دوه ځانې یا بلاربه ښځه .
- څوک د مور زوی : د چا د مخ ( مخامختیا ) مجال نه لرل ، په نوم مور زېږولي وګړي یا هرانسان د مخامختیا توان نه لرل .
- ډوډی غپ " سپی " : کوټه یا کوځه ډب سپی یا نازولی بې څښتنه سپی .

( ۹: ۱۷۱- ۳۵۲ )

- د بوډۍ تال :
- د ګېدړ واده :
- د شړومبو مچ :
- د اسمان کټ :
- د غاړې غور :
- د لستوڼي مار :
- له عقله پلی :
- شین امي :
- نوک او وری :
- ټیټ و پاس :
- د سترګو تور :
- شین زمری : ( ۶: ۷۶ )
- د سرو زرو موږی :
- غوږ لستوڼی :
- غوړې لا غوړې :
- ټک او پتری :
- اخوند او شوروا :
- للمه / اډه او ګنې :
- د بیزو/ شادي پرهر/ ټپ / زخم :
- د بسوګۍ واده :
- ځمکه او اسمان :
- اور او اوبه :
- سرې سترګې :

ب . کړوالې ګړنې Verbal Idioms :

دا دګړنو هغه برخه ده چې رغنده توکي یې کړونه وي . په تولیزډول خپلواک او ناخپلواک ګړونه ، د دغه ډول ګړنو په رغون کې ونډه لري ، خو هغه څه چې له نوموالو هغو یې جلا کوي ، وروستی توکی دی چې کړیا کړنومی ( مصدر ) وي ، لکه د جګ رېبل او جګ لو کول ، کړوالې ګړنې ( Idiom ) .

د کړوالو ګړنو ( Idioms ) څو بېلګې :

- ادې بوربېدل : د ( چا ) د مرګ ښېرا کول ، د مرګ هیله کول .
- ارمان خوړل : ارمان کول ، پښېمانېدل ، ارمانجنېدل .
- اسمان پرېوتل : په کړاو اخته کېدل ، له پېښې سره مخامخېدل .
- اسمان په کاڼو ویشتل : خوشې او بې ګټې کار کول .
- اسمان راکوزول : په چا زیات زحمت او کړاو راوستل ، زیات کړول .
- اسمان نړېدل : پېښه او ناورین پېښېدل ، له پېښې سره مخامخېدل .
- افسانه کېدل : رسوا ېینه ، نوم بدي ، موخه کېدل .
- امید ختل : نهیلی کېدل ، نامینده کېدل .
- اوبه کول : خوارول ، ویلول ، ویلېدل .
- اورته پرېوتل : په غم کې ډوبېدل ، په کړاو اخته کېدل .
- اوږې مړل : ځان ګواښ ته تیارول ، څوک ډارول ، د اړیکو لپاره پلمه .
- ایمان بایلل : تاواني کېدل ، بې غیرتي ، دروغجن کېدل .
- ایمان خوړل : زیات زیانمنېدل ، تاوان ګالل ، بې ننګه کېدل .
- باد پیمانه کول : بې ګټې او بې ښې کار کول .
- بازار تودول : دود پیداکول ، پېرو پلور کول ، نوم خورېدل .
- بازارسړول : له دوده لوېدل ، نوم ورکېدل .
- بخت بېدارېدل : نیکمرغه کېدل ، بختورکېدل .
- بخت زرغونېدل : بختورېدل ، نیکمرغه کېدل .
- برېتونه تاوول : ویاړ کول ، ځان مېړه مېړه او زړور ښوول ، لاپې کول .
- بلا پرېوتل : په غم اخته کېدل ، پر پېښه اوښتل .
- بلا کول : ماهرانه کارکول ، د بلا غوندې ناشونی کارکول .
- پت پالل : وفا کول ، خواخوږي لرل ، دوستي کول .
- په پخه چاړه حلالول : ډېر زیاتی کول ، ځورول ، زهېرول .
- پړی پر غاړه کول : ملامتي منل ، عذر او ننواتې کول .
- پښه نیول : تمېدل ، ځنډ ، سوچ کول ، انتظار پلمه کول .

- پښې وهل : ځان تيار ښوول ، ورون ټپول ، مخنيوى .
- تارپر تاركېدل : خور وورکېدل ، دانه دانه كېدل ، څېرې وېرې كېدل .
- تن اره كول : سختي گالل ، خواري كول ، زيار اېستل .
- تنده سړېدل : خړوبېدل ، په اوبو مړېدل (۱۲) .

مانا او كارونه :

وړاندې مو تر ببلابېلو سرليكونو لاندې څه نا څه دې موضوع ته نغوته وكړه اوځينې تياره گوټونه مو ترې روښانه كړل چې دلته د لاروښانتيا هڅه كوو :

په ټوليز ډول ژبه د خپلمنځي پوهاوي او اړيكو لپاره يوه ښه ، اغېزناكه او بشپړه وسيله ده چې انسانان كولاى شي ، په سمه توگه خپل ذهني توكي نورو ته ورولېږدوي .

دغه لوښه په نورو هغو وسيلو كې چې انسان يې د خپلمنځي اړيكو لپاره كاروي ، نشته . زموږ موخه له ژبې څخه هغه سيستم دى چې له وييزو او اوريزو نښو يا سېمبولونو رغېدلى او د خپلمنځي پوهاوي او اړيكو لپاره كارېږي .

ژبني يوونونه چې په ټوله كې د ژبې د پېژند تابع دي ، ټول د دې لپاره دي چې د انسانانو ترمنځ اړيكي ټينگوي . يوانسان خپل ذهني جاجونه د اوازونو په مرسته بل ته لېږدوي اوښكاره كوي او مخامخ لورى هم همدا چار ترسره كوي چې پايله يې يوتربله اړيكي دي .كله چې يو څوک غواړي له خپل بل همځبل (انسان) سره اړيكه ټينگه كړي او هغه څه چې په فكر او ذهن كې يې وي ووايي ، نو د غوښتنې سره سم خپل ذهني توكي د ويي ، غونډ ، غونډلې او وينا په جوړښت او چوكاټ كې مخامخ لوري ته ورلېږدوي .

فكركوم له مانيز او موضوعي پلوه د ژبنيو يوونو ويشون ناشونى دى ، ځكه ټول ژبني يوونو د ذهني توكو د لېږد دنده ترسره كوي او دنده يې يوه ده . ذهني توكي كه هره موضوع وي په هركالب او ژبني يوون كې د ليږد وړ دي . له دې څخه مې موخه داده چې موږ كولاى نه شو چې كوم ژبني جوړښت يا يوون د يوې ځانگړې موضوع لپاره ځانگړى كړو او ووايو چې يوازې هغه يا دغه ډول منځپانگې او موضوعات رانغاړي . د بېلگې په توگه : ويى دا ، ترښت هغه او نور . خو كه دغه موضوع ته له يوبل اړخه وگورو ، په دې ډول چې ځينې ژبني يوونونه د مانا له مخې بشپړ او ځينې نابشپړ دي ، لكه : خپلواک او ناخپلواک گړونه يا وييكي ، ويي ، غونډ او غونډله چې په خپل منځ كې له مانيز توپير( بشپړني او نيمگړني ) سربېره جوليز هغه هم لري .

گړنه (Idiom) هم د ژبني يوون په توگه د هر ډول ذهني توكو( مفاهيمو ) د لېږد وسيله ده ، هر ډول موضوعات او ماناوې رااخلي ، له همدې امله يې وگړي په ژبه كې كاروي . دگړنوكارونه په وگړو كې ډېره عادي خبره ده او داسې نه ده چې گواكې د كومې گړنې د اورېدلو پروخت دې څوک گړنى بهير تم يا پرې كړي او يا دې د هغې د مانا پوښتنه وكړي . د گړنو په كارونه او مانا خلک هاغسې پوهېږي ؛ لكه نور ژبني يوونونه چې په ورځنيوخبرو كې يې كاروي .د يادونې وړ ، هغوى

چې غواړي يوه ژبه زده کړي ، د دا ډول جوړښتونو ( ګړنو او متلونو ) زده کړه يې ډېر کړوي ، ځکه د زده کوونکي پام د ګړنيز غونډ د رغنده يوونو لومړۍ او ځاني ماناخوا ته ځي ، هغه چې موخه نه وي .

ګړنه د ژبې په دواړو ډولونو ،ګړنۍ او ليکنۍ کې کارېدنګ لري ، همدارنګه د وينا په دواړو څېلونو ( نظم او نثر ) کې يې ونډه پراخه ده . د ګړنې دا ځانګړنه چې په سيده او مستقيمه توګه او يا د وييو له لومړنيو ماناوو څخه يې موخه نه ترلاسه کېږي ، له نظم او شعرسره څه ناڅه ورته والی لري ، له همدې کبله يې له يادو ويناووسره ملتيا ډېره او غښتلې ده .

## اخځونه


۱ . الکوزی ، جانداد او شېرزاد ، محمد اقا . پښتوغونډله پوهه . کابل صمیم ادبي ټولنه ، ۱۳۸۶ ل .ل .

۲ . حبیبي ، عبدالحی . د پښتو د نوي ادب لارې . پېښور ، میهن خپرندویه ټولنه ، ۱۳۸۶ ل .ل .

۳ . خاورې ، غوټۍ . د پښتو شفاهي ادبیات . کابل ، پښتو ټولنه ۱۳۶۶ ل . ل .

۴ . دوست شینواری ، محمد دوست . د پښتودولسي ادب لارې . پېښور، دانش خپرندویه ټولنه ،۱۳۸۵ل.ل .

۵ . رښتین ، صدیق الله . پښتو اشتقاقونه او ترکیبونه ( دویم چاپ ) . پېښور ، ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز ، ۱۳۸۳ ل .

۶ . رښتین زېور ، زرغونه . پښتو نحوه . پېښور ، ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز ، ۱۳۸۲ ل .ل .

۷ . زاهد مشوانۍ ، عبدالقیوم . زاهد پښتو ـ پښتوسیند . پېښور ، دانش خپرندویه ټولنه ، ۱۳۸۵ ل .ل.

۸ . زیار ، مجاوراحمد . پښتو پښویه . پېښور ، دانش خپرندویه ټولنه ، ۱۳۸۴ ل.ل .

۹ . زیار ، مجاوراحمد . د خوشال ادبي پښتو . پېښور . دانش خپرندویه ټولنه ،۱۳۸۵ل .ل.

۱۰ . زیار ، مجاوراحمد . ویېپوهنه . کابل ، کابل پوهنتون ،۱۳۶۰ل.ل.

۱۱ . سادات ، سارا . ملي ترمینالوژي . کندهار ، بېنوا فرهنګي ټولنه ۱۳۸۸ ل.ل.

۱۲ . صمیم ، محمد آصف . د لرغونې شاعرۍ ګړنې . جرمني ، د پښتني فرهنګ د ودې او پراختیا ټولنه ،۱۳۸۷ ل.ل .

۱۳ . عمید ، حسن . فرهنګ عمید ( سه جلدي ، جلداول ) . تهران ، موسسه انتشارات امیرکبیر ، ۱۳۸۱ ل.ل .

۱۴ . غربیار، سیداګل . ولسي مرغلرې . پېښور، دانش خپرندویه ټولنه ، ۱۳۸۴ ل.ل.

۱۵ . محمد رفیع . د ماشومانو ګل غونچه . پېښور، د اریک د ګرځنده کتابتونواداره ، ۱۳۸۰ ل . ل .

۱۶ . یمین ، محمد حسین . واژه شناسي در زبان فارسي . کابل ، بنګاه انتشارات میوند ، ۱۳۸۴ ل . ل .

۱۷. Cambridge. Cambridge Idioms Dictionary. ۲ Ed. Cambridge, Cambridge University Press, ۲۰۰۷.

۱۸. Hornby A .S. Oxford Advanced Learner's Dictionary. ۷ ed. Oxford, Oxford University Press, ۲۰۱۰.

١٩. Swan, Michael. Practical English Usage.٣ Ed .Oxford, Oxford University Press, ٢٠٠٥.



## د لیکوال لنډه پېژندنه

ښاغلی شاه محمود کډوال د گل حمید خان زوی ، آر ټاټوبی یې د لغمان ولایت د کټل کلی ، پر ۱۳۵۹ لمریزکال د ننگرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ ، د غازي اباد په سیمه کې زېږېدلی دی .

لومړنۍ زده کړې یې د غازي اباد په لېسه ، منځنۍ یې د نجم المدارس په عالی مدرسه او ثانوي هغه یې د هډې فارم په لېسه کې پر ۱۳۷۵ لمریز کال ، بشپړې کړې دي .
کډوال په ۱۳۸۱ ل کې د کانکور ازموینې له لارې ، د کابل پوهنتون ، د ژبو او ادبیاتو پوهنځي ته بریالی شو ، هلته کې یې پښتو څانگه د زده کړې لپاره غوره کړه . ډېر لږ وخت وروسته یې ځان د ننگرهار پوهنتون ته تبدیل کړ او هلته یې خپله زده کړه پیل کړه . نوموړی د خپلې زده کړې په بهیر کې ، له پیله تر پایه ، په لومړۍ درجه کې وو او په همدې درجه پر ۱۳۸۵ لمریز کال ، له دې څانگې او پوهنتونه فارغ شو .
له فراغت وروسته ، په ۱۳۸۵ لمریز کال کې د بغلان پوهنتون د کادري غړي په توگه پر دنده وگمارل شو او هلته د ښوونې اوروزنې پوهنځي په پښتو څانگه کې په ښوونه بوخت شو . د دې تر څنگ ، په ۱۳۸۶ لمریز کې ، د ښوونې او روزنې پوهنځي مرستیال او په ۸۷ - ۱۳۸۸ کلونو کې ، د پوهنتون اداري مرستیال شو ، خو له وروستۍ دندې یې ځان گوښه او په ښوونه بوخت شو .
کډوال د دې ترڅنگ چې د پښتـــو ژبې او ادب یو څانگوال غړی دی ، په ژورنالیزم ،انگلیســي ژبه او کمپیوټرکې یې هم لنډ مهالې زده کړې کړي دي . د هېواد دننه او بهر کې یې گڼې ټولنېزې او ادبي لیکنې له بېلابېلو خپرونو ، خپرې شوې دې . کلــه نا کلــه یونیم شعر هــم لیکي ، د ( سندریزې ساندې ) تر سرلیک لاندې یې یو شعري ټولگه خپره شوې ده . د ملي او رسمي ژبو ( پښتو او دري ) ترڅنگ په انگلیسي او اوردو ژبو هم پوهېږي .

درنښت



مننه !

ښاغلی الحاج وحیدالله ( ولیزی ) د وحید وهاج ودانیز شرکت مشر، هغه مسلمان افغان ځوان دی چې د خپلو ډېرو نورو ښـېګڼو په لړۍ کې يې یوه بله کړۍ هم ورزیاته کړه او ددې اثر د خپراوي مالي لګښت يې پرځان ومانه . پرځوانۍ يې برکت شه !!